


## دا کتاب د انډرويډ موبايلو لپاره په لاندې مشخصاتو په ګوګل ستور کې هم موندلای شئ

د کتاب ټول ټال وزن ۱۴ ايم بي ده

د کتاب هره برخه،هرمضمون کاپي او په ټولنيزو شبکو نشرولای شئ

په کتاب کې د سند په ټول ۸۱ اتيا انځورونه او د يوټيوب او ځينو نورو سايټو لينکونه شته دي چې مستقيم يې کتلای شئ

په اپليکېشن کې پلټنځای شته پلټنه کې کولای شئ

په کتاب کې د خوښې ور ليکنه د خوښې ور ځای کې درته سرېښ کولای شئ

د کتاب ټولې ليکنې په پنځه ډوله تغير او سايز يې ورته کوچنی او غټولای شئ

ليکلو ته د خپلې خوښې مطابق رنګ اتخابولای شئ

د ليکولو په مابين کې فاصله د خپلې خوښې مطابق انتخابولای شئ

هره ليکنه او يا هم مکمل اپليکېشن له ملګرو سره شرېکولای شئ

په کتاب کې د الهداية خپرندويه اداري لخوا ګوګل ستور ته د پورته شويو کتابونه مجموعه لينک شته چې له هغه ځايه ټول کتابونه کتلای شئ

**د اپليکېشن ډاونلوډ کړل**



په ګوګل ستور کې ورته وليکئ ( **له موصله ترننګرهاره حقايق** ) او يا له لاندې پيوندونو څخه استفاده وکړئ

**ټليګرام چيـــــــــنل:** www.Telegram.me/HedayatApp

**فېسبوک ډله (ګروپ)** www.facebook.com/groups/Hedayatapp

يادونه : د فېسبوک له ګروپ څخه يې د فېسبوک په انټرنيټ پيکج (بنډل) هم داونلوډ کولای شئ

په درنښت

الهداية خپرندويه اداره

Hedayatjanjan@gmail.com

# داعش له موصله تر ننګرهاره (حقایق، اسرار، اسناد) دلیکنو مستنده لړۍ

## لیکوال: قاري سعید خوستی

## سریزه

د یویشتمې پېړۍ په لومړۍ یوه نیمه لسیزه کې د نړۍ سُپرپاور امریکا او د هغې پوځي ائتلاف ناټو زموږ بشري نړۍ له خورا سترو چیلنجونو سره مخ کړه. د ۱۱م ستمبر د ناڅرګندي معما په پلمه یې لومړی پر افغانستان پوځي برید وکړ ورپسې یې د هستوي وسلو په بهانه پر عراق یرغل ورووړ چې .په دې توکه یې په سویلي آسیا او منځنۍ ختیځ کې د مرګ او ژوند یوه ناتمامه تراژیدي را پیل کړه چې تراوسه لا جریان لري

دا ناورین یوازې تر پوځي څواک کاروني پورې محدود پاتې نه شو، بلکې په ترځ کې یې نورو فتنو هم سر را اوچت کړ، چې د مسلمانانو د ډېرې ستړې څورونې سبب شو . په عراق کې د شیعه سني ، تر نامه لاندې فتنه دومره وغوړېده چې ان ټول شرق الأوسط یې په لمبو کې را ایسار کړ. د همدغې فتنې د لا تازه کولو او ژوندۍ ساتلو په موخه د داعشي خلافت په نوم، یوه بله فتنه رامنځ ته شوه. د خلافت نامه ته که څه هم د لنډ مهال لپاره د مضطرب امت هیله مندي پیدا شوه خو متاسفانه چې ډېر ژر د هغوی د نا اسلامي او نا انساني کړنو له امله بېرته ټول اسلامي امت نا .امیده شو

دغه فتنه د مسلمانانو لپاره هغه وخت نوره هم خطرناکه ثابته شوه چې د بنسټ لینک یې له یهودي او صلیبي چینلونو سره تړلې وګڼل شو. د .یرغلګرو دا لوبه هغه مهال نوره هم واضحه شوه چې تخم یې د افغانستان په پاکه خاوره کې هم را وټوکید

رښتیا هم دا خبره ګرانه ده چې د داعش په نوم د اسلامي خلافت یوه لوبه دډله، څنګه د مسلمان امت لپاره سردرد بلل کېږي ؛ په داسې حال کې چې هغوی ځانونه د نبوي منهج اصلي پیروان ګڼي. دا پېژندنه یې داسې یو تحقیق او څېړنې ته اړتیا لري چې په اړه یې د پېژندنې مستند شواهد د باخبره عالمانو لخوا وپلټل شي. همدا اړین کار و چې قاري سعید خوستي صاحب انجام کړی، په دې کتاب کې یې پرته له څه ذهني تمایل نه ، پر مستندو دلایلو ولاړ ښه ژور تحقیق کړی چې یاده ډله یې داسې معرفي کړې چې د هغوی بنسټ ، پیدایښت ، عروج او د پرمختګ مراحل یې راسپړلي ، بیا یې د هغوی ټولې سمې او ناسمې کړنې ذکر کړې دي ، په عربي او نوره اسلامي نړۍ کې د هغوی په وړاندې د علماؤ نظرونه بیان شوي ، ورپسې یې د داعش خلافت او د هغوی ډله د قرآن او حدیث د نصوصو په رڼا کې څېړلې. افغانستان ته د داعش د را انتقالیدلو په اړه په کتاب کې خورا جالب .او معلوماتي بحث شوی دی

نو زه باور لرم چې دا کتاب به له هغه چا سره ډېره زیاته مرسته وکړي چې غواړي د داعش او د هغوی د اسلامي خلافت په اړه ځان پوه کړي ، خصوصاً هغه ځوانان چې د داعش په لیکو کې نوي جذب شوی او یا د جذب په حال کې دي ؛ هغوی دې هرو مرو دا کتاب ولولي ترڅو د حق او .باطل لورې ورته څرګند شي او په یوه متشابه لاره کې د دوی له پاکو جذباتو سره لوبې ونشي

دا کتاب کولای شی چې تاسو ته یو ښه لورې وټاکي . ترڅو په دنیا کې له داسې فتنو څخه وژغورل شو چې د آخرت د تباهۍ اسباب راته مهیا کوي. .خدای تعالی دې یې لیکوال ته د حق د بیانولو نور هم توفیق او لوستونکو ته د اعظمي استفادې توان ورپه برخه کړي

آمین

**موسی فرهاد**

# لومړی فصل

## خوارج

خوارج د اسلام په تاريخ کې د مبتدعه ډلو په مينځ کې لومړی ډله ده چې راڅرګنده شوه. د خارجي فکر ظهور د الله د رسول صلی الله عليه وسلم په حياتِ طيبه کې وشو. ذوالخويصره التميمي يا حَرقُوص بن زُهَيرالسَّعدي (بناء په اختلاف د رواياتو) لومړی خارجي ؤ چې د الله د رسول په وړاندې يې ګستاخي وکړه او داسې يې اويل: إعدل يامحمد.

د لغت په لحاظ خوارج د خارجي ډيرن دی چې يا له طاعته وتونکي او يا له دينه وتونکي ته ويل کيږي.

دخوارجو په آړه نبوي ص ارشادات او د هغې فقه او فوايد

لومړی حديث: امام احمدبن حنبل او امام بخاري پخپل خپل سند سره د ابو سعيد الخدري رض څخه نقل کوي چې وېې فرمايل: بَعث عليٌّ وهو بِاليمن إلى النبيّ صلَّى الله عليه وسلم بذُهَيْبَةٍ فِيْ تُربَتِها إلى رسولِ الله صلَّى الله عليه وسلم فقسّمها رسولُ الله صلّى الله عليه وسلم بَين الأقْرع بن حابس الحَنظلِيّ ثُم أحد بني مُجاشعٍ، وبين عُيَينة بن بَدْرالفزّاري، وبين عَلقمة بن عُلاثة أحد بني كِلاب وبين زَيْدالخيرالطّائيّ ثم أحد بني نبهان قال:فغضِبتْ قُريشٌ والانصار قالوا:يُعطِي صَناديد أهل نجدٍ ويدَعُنا؟ قال إنما أتألّفهم . قال فأقبل رَجلٌ غايرُالعَينين، ناتئُ الجَبِين، كَثُّ اللَّحية، مُشرفُ الوَجْنتين، مَحلوق الرَّأس، فقال : يامحمد إتَّقِ اللّهَ فقال: ومن يُطعِ اللّهَ إذا عَصيتُه؟ يأمنُنِيْ على أهلِ الأَرض ولاتأمنُوني " قال: فسأل رجلٌ النبيَّ صلّى الله عليه وسلم قتلَه_أُراه خالدَبن الوليد_ فلما ولَّى قال:إنّ من ضِئضِئِ هذا قوماً يَقرؤون القُرآن لايُجاوِز حَناجرهم٬ يمرقون من الإسلام مُروقَ السّهمِ من الرميَّةِ٬ يَقتلون أهل الإسلام ويَدَعون أهل الأوثان٬ لئن أنا أَدركتهُم لأَقتلنَّهُم قَتل عاد" (بخاري ج٢ حديث نمبر٧٤٣٢ مسند امام احمد ج٣ ص ٤ )

ژباړه:علي رض له يمن څخه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د سرو زرو داسې ټکړه راوليږله چې په خاورو آلوده وه (نوي وه) رسول الله صلى الله عليه وسلم د اقرع بن حابس، عيينه بن بدرالفزاري، علقمه بن علاثه، او زيد الخير په مينځ کې تقسيم کړه، قريش او انصار غصه شول چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د نجد د خلکو مشرانو ته ورکړه کوي او موږ پريږدي(څه نه راکوي) هغه مبارک اوفرمايل: زه دوی ته پدې خاطر مال ورکوم چې د اسلام سره يې مينه پيدا شي. يو کس چې ژورې سترګې، وتلی تندی، ګڼه ږيره، اوچت اننګي، خرييلی سر يې ؤ راغلو او وېې ويل: آی محمده له الله څخه اوبريږه هغه ص اوفرمايل: نو څوک به د الله اطاعت کوي چې زه يې نافرماني وکړم؟ الله تعالى زه د زمکې په خلکو امين ټاکلی يم خو تاسې ما امين نه ګڼی. راوي وايي : له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه يو کس چې ګمان کوم خالد بن وليد به وي د ده د وژلو اجازه اوغوښته ،خو چې کله دا سړی واپس شو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل: د دې سړي له نسبه به داسې خلک

راؤوځي چي قرآن به لولي خو له اسلامه به داسې وځي لکه غشی چي له ښکاره وځي، مسلمانان به قتلوي او بت پرستان (کافران) به پرېږدي که ما د دوی د راوتلو زمانه بیاموندە د عادیانو په شان به يې اوژنم (يعني بيخ اوبنياد به ختم کړم) .

دحديث فائدې

(۱) له حديث څخه د خوارجو کمالِ ګستاخي معلوميږي چي دوی حتی د الله د رسول په وړاندې دومره بې ادبه ؤ .

(۲) د خوارجو د راڅرګندیدو لوی سبب د مال طمع وه. همدا ذوالخویصرة التميمي ځکه په رسول الله صلی الله علیه وسلم د ظلم تهمت ولګولو چې هغه ته د حنين د غنيمتونو څخه څه ورنکړل شول.

(۳) خوارج د امورو په وړاندې له بيړې څخه کار اخلي او په صبر او حلم سره فيصله نه کوي .

(۴) خوارج د مصالحو او مفاسدو اصل نه مراعتوي، چې په رسول الله صلی الله عليه وسلم يې تنفيد وکړ په داسې حال کې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د مصلحت په بنياد هغوی ته مال ورکړی ؤ.

(۵) د دوی صفت د ظاهر اصلاح او د باطن فساد دی همدا وجه ده چې ابن عباس وايي :ليس باشدَّ اجتهادا من اليهود والنصارى ثم ضلوا ؛ خو د دې سره بيا هم دوی له دين څخه وتونکي دي.

(۶) دخوارجو بل صفت بدګماني ده چې د دوی نيکه په رسول الله صلی الله عليه وسلم کړي وه همدا ډول هغه څه ګناه بلل چې ګناه نه وي.

(۷)حافظ ابن حُجر وايي :کله چې مراد په دين سره اسلام شي، نو دا بيا دليل د هغه چا لپاره دی چې خوارج کافر بولي خو که مراد له دين څخه طاعت شي نو بيا دوی فاسقان دي چې دا قول د جمهورو دی(فتح الباري ج۶ ص ۶۱۸ )

(۸) په حديث کې ترغيب دی په قتال د خوارجو. ځکه خارجي فکر اسلام ته تر يهوديت او نصرانيت هم لوی خطر دی ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم د دوی لپاره يوازې د وژلو تمنا نه کوي بلکې د عاديانو په څير يې بنياد ختمول غواړي ځکه د اسلام په تاريخ کې خارجيت دشا لخوا خنجر ثابت شوی.

(۹) د خوارجو سره د نورو مبتدعه ډلو برعکس تعامل کولی شي، په دې معنی چې د باغيانو سره جنګ کولی شي تر هغې چې په طاعت د امام کې داخل شي، د باغيانو اسير او زخمي نه شي وژلی خو د خوارجو لپاره د عاديانو په څير وژنه غوښتل شوې ده. علامه ابن تيميه وايي: د خوارجو په اړه د قتال امر د باغيانو او لاروهونکو په څير نه دی ځکه دوی د عاديانو په شان وژل نه دي روا په خلاف د خوارجو چې هغوی بايد دعاديانو په څير له بيخه اويستل شي (الصارم المسلول ج۲ ص ۳۴۷)

(۱۰) یقتلون اهل الاسلام ویدعون اهل الاوثان دا د خوارجو بل ممتاز صفت دی چې کفار مشرکین به نه وژني بلکې د دوی توري به هر وخت د مسلمانانو ګردنونه پرې کوي. امام ابن تیمیه ح لیکي: لأن أولئك عندهم كفارٌ أصليیون وهولآء مرتدّون وكُفرالرِّدة أغْلَظ بالإجماع من الكُفرالأصلي (مجموع الفتاوی ج۲۸ ص ۸۴۷) ځکه چې دوی عام مؤمنان مرتدین بولي او په اجماع سره د ارتداد کفر سخت دی د اصلي کفر څخه نو د دوی د پلیت اعتقاد مطابق لومړۍ باید مرتدین اوژل شي وروسته د اصلي کافرانو سره مقابله وشي.

## دویم حدیث

امام بخاري د یُسَیربن عمرو څخه پخپل سند سره نقل کوي چې فرمایي: قلت لسُهیل بن حُنَیْف هل سمعتَ النبيَّ صلّی الله علیه وسلم یقول فِي الخوارج شیئاً؟ قال سمعتُه یقول وأهوی بیده قِبَل العِراقِ یَخرُج منه قوم یَقرؤون القرآن لایُجاوزُ تَراقیهم یَمرقون من الإسلام مُروق السّهمِ من الرّميةِ (بخاري ج۲ ح ۶۹۳۴)

ژباړه:یُسیربن عَمرو وایي چې ما سُهیل بن حُنیف ته اویل: تا له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د خوارجو په اړه څه شی اوریدلي دي؟ هغه اویل چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي چې فرمایل یې او په لاس سره یې د عراق په لور اشاره وکړه: له دې خوا به یو قوم راؤوځي چې قرآن به لولي خو له مریو به یې لاندې نه کوزیږي له اسلامه به داسې وځي لکه غشی چې له ښکاره ووځي .

## دریم حدیث

امام ابن ماجه او امام احمد پخپل خپل سند سره د ابن عمر څخه نقل کوي چې فرمایي: سمعتُ رسولَ اللهِ صلّی الله علیه وسلم یقول :كُلّما خرجَ قَرنٌ قُطع أكثر من عِشرینَ مرةً حتی یَخرجُ فِي عِراضِهم الّدجَّال (سنن ابن ماجه ص۱۴۷ مسند امام احمد حدیث رقم ۵۵۶۲)

ژباړه: ابن عمر فرمایي چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چې فرمایل یې: کله چې هم د دوی (خوارجو) ښکر (څه قوت )راڅرګند شي الله تعالی به یې پرې کړي تر دې چې دا کلمه یې ۲۰ ځله تکرار کړه هغه مبارک اوفرمایل :تردې چې د دوی په ډله کې به آخر دجال هم راڅرګند شي

## د دواړو حدیثونو فایدې

(۱) رسول الله صلی الله علیه وسلم د عراق په لور په لاس سره اشاره کول دا خبره په ډاګه کوي چې عراق به د دوی د ظهور مرکز وي، تاریخ ثابته کړې چې عراق تل د فتنو او مبتدعه ډلو لپاره ځاله پاتې شوي ده. د اسلام په تاریخ کې عراق دلویو فتنو او فسادونو شاهد پاته شوی چې له امله یې ټول اسلامي امت سخت کړیدلی دی.

(۲) له پورتني حديث معلوميږي چې دا ډله به تکرارا راڅرګنديږي خو الله تعالی به يې هلاکوي، داسلام په تاريخ کې خوراجو څوځله ظهور کړی دی چې ترټولو خطرناک يې د عراق اوسني بعثي خوارج دي

(۳) تر ټولو خطرناک دا چې په دوی کې به دجال راڅرګنديږي يعنې دجال به هم د خوارجو له ډلې څخه وي.

(۴) د خوارجو بل هغه صفت چې په احاديثو کې ذکر شوی هغه قرآة القرآن دی، يعنې دوی به قرآن ډير ښکلی او په تجويد سره لولې خو دا به يې تر ظاهره محدود وي په باطن کې به يې قرآن هيڅ آثر نه کوي.

## څلورم حديث

امام احمد، امام ترمذي، امام ابن ماجه پخپل خپل سند سره د سعيد بن جهمان څخه روايت کوي چې فرمايي:كُنّا نُقاتل الخوارجَ، وفِينا عبدالله بن ابي أَوْفى، وقد لَحق غُلام له بالخوارج ،وهم من ذالک الشَّطِّ ونحن من ذا الشّط فناديناه: أبافَيْروز، أَبافَيْروز، وَيحک هذا مولاک عبدالله بن أبي أوفى قال :نِعم الَّرجل هو لو هاجر؛قال: مايقول عَدُوّالله؟ قال قلنا يقول: نعم الرجل لوهاجر؛ قال فقال: أهِجرةٌ بعد هجرتِيْ مع رسول الله صلَّى الله عليه وسلم؟ ثم قال: سمعتُ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم يقول : طُوبى لِمن قتلهم وقتلوه.

ژباړه: سعيد بن جهمان وايي: عبدالله بن ابي اوفى زموږ سره راسره ؤ کله چې موږ د خوارجو سره په جنګ کې ؤ، دنوموړي يو غلام د خوارجو صف ته ورغلو، موږ په يو طرف کې ؤ دوی په بله خوا کې ؤ، موږ ورته چيغه کړه چې ابافيروزه ابافيروزه هلاک شې دا دی ستا مولی عبدالله بن ابي اوفى (ديخوا ته راشه) هغه غلام چې خارجي ؤ اويل: عبدالله ښه سړی دی خو که هجرت يې کړی وای، عبدالله اويل دا د الله دښمن څه وايي؟ موږ ورته اويل چې داسې وايي هغه اوفرمايل: آيا د الله د رسول سره له هجرت څخه وروسته بل هجرت؟ بيا يې اويل: چې ما له رسول الله څخه اوريدلي چې فرمايل يې: خوشالي ده هغه چا لره چې دوی يې اوژل او هغه چا لره چې دوی اوژلو.

## دحديث فايدې

(۱) خوارج د دوی له سلطې څخه وتلي ټولې زمکې دارالحرب بولې او په مسلمانانو له هغه زمکو څخه هجرت فرض بولي او څوک چې هجرت نه کوي هغه مجرم بولې ځکه ابافيروز خارجي په جليل القدرصحابي طعن اويلو.

(۲) لوی فضيلت هغه چا لره چې د دوی لخوا شهيد کړل شي او هغه څوک چې په دوی ځان غازي کړي.

## پنځم حديث

ابوداؤد، ابن ماجه، احمدبن حنبل پخپل خپل سند سره د ابو سعيد خدري[رض] ،انس بن مالک[رض]، څخه نقل کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل:سَيكُون فِي أُمّتي إختلاف وفُرقةٌ٬ قومٌ يُحسنونَ القِيل ويُسِيئُون الفِعلَ٬ يَقرؤُون القُرآن لايُجاوز تراقيهم٬ يَحقِر أحدكم صَلاتُه مع صلاتِهم وصيامُه مع صِيامهم٬ يَمرُقون من الدين كما يمرُق السّهم من الَرميَّة ٬

لايرجعون حتى يرتدُّ السهم على فُوقه هم شرُّالخلق والخليقةِ طُوبى لمن قتلهم وقتلوه يدعون إلى كتاب الله وليسوا منه في شئٍ من قاتلهم كان أولى بِالله منهم(مسندالإمام احمدج۳ص۲۲۴، سنن ابي داؤودج۲ص ۳۰۸ سنن ابن ماجه ص۱۷۵) وعن إبن عمر أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:الفتنة ههنا من حيث يطلع قَرْن الشيطان وأشار بيده نحوَالعِراق(صحيح البخاري ج۲ص۶۲۳، صحيح مسلم ج۲ ابواب الفتن واشراط الساعه،مسند امام احمدج۲ص۱۲۱)

ژباړه:په نږدې وخت کې به زما په امت کې تفرقه او اختلاف پيدا شي، داسې يوه ډله(قوم) به رامينځ ته شي چې خبرې به يې ښائسته وي خو عمل به يې بدرنګ وي ، قرآن به لولي خو له مريو به يې لاندې نه ښکته کيږي، يو له تاسې به د دوی د لمانځه په وړاندې خپل لمونځ سپک ګڼي او خپله روژه به د دوی د روژې په وړاندې سپکه ګڼي، له دين څخه به داسې وځي لکه غشی چې له ښکاره وځي ،بيا به دين ته نه واپس کيږي تر څو چې غشی خپل فُوق (دوتلو ځای) ته واپس شوی نه وي(نو هغه خو ناممکن دي دا هم ناممکن دي) دوی بدترين مخلوق دی خوشالي ده هغه چا لره چې دوی قتل کړي او هغه چا لره چې د دوی له لاسه اوژل شي، چا چې له دوی سره جنګ وکړ هغه ډير لايق دی په دې جنګ سره د دالله په نزد له دوی څخه (ځکه هغه په حقه دی). ابن عمر له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه نقل کوي چې وېي فرمايل: فتنه به دلته وي له کومې خوا چې د شيطان ښکر راڅرګنديږي او په لاس سره يې د عراق خواته اشاره وکړه.

## د حديث فائدې

(۱) قومٌ يُحسنون القِيل ويُسيئون الفعل. د اوسنيو او پخوانيو خوارجو ګډ صفت چې صادق او مصدوق ﷺ يې ۱۴ سوه کاله پخوا وړاندوينه کړې وه څومره رښتيا دی! خوارج تل په خوله هغه څه وايي چې له کردار او عمل سره يې آړخ نه لګوي، دوی تل دمسلمانانو د غولولو لپاره ځانونه داسې معرفي کړي چې همدا دوی د اسلامي امت د ډوبيدونکي کشتۍ ژغورونکي دي په داسې حال کې چې دوی د اسلامي امت په خاصره کې خنجر دی .

(۲) يقرؤون القرآن لايُجاوز تراقيهم : معنی دا چې دوی به د قرآن لوستونکي وي خو هغه به يې په عمل کې نه وي ځکه تر مری به يې لاندې نه وي کوز شوی .

(۳) يَحقِر أحدکم صلاته مع صلاتهم وصيامه مع صيامهم: په رواياتو کې دا کلمات په دوه ډوله نقل شوي لومړی داچې تاسې به خپل لمونځونه او روژې د دوی له لمونځونو او روژو سره سپک ګڼۍ ځکه دوی به ډير عبادت ګذار وي او ټول عبادات به په کامله توګه اداء کوي نو تاسې ته به خپل لمونځونه ډير ټيټ ښکاري. دويم دا چې: يحقرون صلاتکم مع صلاتهم وصيامکم مع صيامهم: دوی به ستاسې لمونځونه او روژې د خپلو لمونځونو او روژو سره سپک ګڼي ځکه دوی به تاسې ته د يو مسلمان عقيده نه لري، چې دا هر څه نن موږ مشاهده کولی شو.

(۴) يمرقون من الدين : يمرقون د نَصَرَ يَنصُرُ له باب څخه د مضارع (راتلونکي) فعل دی، دلته د ماضي (تير) فعل (ورب) رانه وړل شو ځکه دوی له دين څخه وتلي نه دي خو د دوی اخيري مرجع به له دينه وتل وي ، ځکه دوی به د هغه چا مرګ مباح

بولي چې شرعا قاطع حرام وي دوی به هغه مالونه او حتی هغه ناموسونه چې شرعا حرام دي حلال بولي چې د تحليل د حرام او د تحريم د حلال اصل په مقتضی به دوی آخرالامر کافر ګرځي.

(۵) د ابن عمر په حديث کې د الله رسول عراق طرف ته اشاره کړي ده چې د دې خوا څخه به فتنه څرګنديږي همدا عراق دی چې د تاريخ په اوږدو کې د فتنو د رهبرۍ مرکز پاتې شوی .

## دخوارجو سره د علي<sup>رض</sup> تعامل

عبدالله بن سبأ يهودي چې ظاهرا يې ځان مسلمان معرفي کاوه عراقي قبايل چې اکثر يې عراقي خوارج ؤ له ځان سره ملګري کړل او مديني منورې ته په دې منظور راغی چې ګواکې اميرالمؤمنين عثمان <sup>رض</sup> بايد معزول کړل شي ځکه هغه په ټولو لوړو منصبونو خپل رشته داران مقرر کړي دي . وقعة الدار د اسلام په تاريخ کې تر ټولو غمجنه ورځ ده په هغه ورځ چې اميرالمؤمنين په خپل کور کې له اوږدې ظالمانه محاصرې څخه وروسته د خوارجو له لاسه په داسې حال کې شهيد کړل شو چې د قرآن کريم دا مبارک آيتونه يې زمزمه کول: طه ما انزلنا عليک القرآن لتشقی الخ اوبه وينو يې قرآن کريم لت پت شو، دا يهودي پروژه هم د يهودو لخوا طرحريزي او د خوارجو لخوا عملي جامه ورواغوستل شوه .

همدا خوارج چې په قراؤو(قاريانو) مشهور ؤ او تعداد يې هم ډير ؤ له حضرت علي <sup>رض</sup> سره بيعت وکړ خو کله چې حضرت معاويه <sup>رض</sup> خبر شو نو د حضرت علي <sup>رض</sup> سره يې د بيعت لپاره شرط دا مقرر کړ چې لومړی بايد د حضرت عثمان قاتلين قصاص کړل شي خو حضرت علي <sup>رض</sup> د خپل اجتهاد له مخې غوښتل چې د دوی څخه وروسته انتقام واخيستل شي ، چې همدا اجتهادي خلاف د دوی ترمينځ د جنګ تر پولې ورسيدو ، جنګ جمل رامينځ ته شو، جنګ صفين رامينځ ته شو چې په زرګونه صحابه کرام پکې شهيدان شول چې د دې جنګونو پړه هم د خوارجو په غاړه ده .

په جنګ صفين کې شاميانو د خپل شکست د مخنيوي لپاره قرآنِ کريمونه په نيزو کې پورته کړل او د جنګ د بندولو غوښتنه يې وکړه او ويې ويل چې راځئ چې په قرآن فيصله وکړو، حضرت علي <sup>رض</sup> چې پوهيده چې دا د شکست د مخنيوي يوه هڅه ده په لومړي سر کې يې د جنګ بندولو غوښتنه رد کړه خو قراء، خوارج چې سفهاء الاحلام ؤ حضرت علي <sup>رض</sup> ته اخطار ورکړ چې که دې جنګ بند نه کړ د عثمان په څير به اوژل شي.

جنګ بند شو او د حکمينو په مقررولو موافقه وشوه، دحضرت معاويه له لورې حضرت عمروبن العاص او د حضرت علي له لورې حضرت ابو موسی الاشعري د مينځګړو په توګه وټاکل شول د دوی سره د صحابهءکرامو يوه ډله هم وه، په دومةالجندل مقام کې لومړۍ غونډه ترسره کړه او له دواړو خواؤ څخه يې کلکې ژمنې واخيستې چې د دوی فيصله به مني.

کله چې علي <sup>رض</sup> له صفين څخه واپس شو، دولس زره کسان چې په قراؤ مشهور ؤ له ده څخه جدا شول او علي <sup>رض</sup> يې په دې وجه کافر اوباله چې له الله تعالی څخه سوا يې نور حاکمان مقرر کړي دي او دا شعار يې له ځان سره ليږداوه: لاحکم الاالله فيصله يوازې د الله تعالی معتبره ده .

## خوارج د حضرت علي رض په دور کې، له دوی سره دده رض تعامل

حضرت علي رض په لومړي سر کې دوی ته د دوی د اصلاح او تقنیع په منظور کسان ورولیږل خو حرقوص بن زهیر او زرعه بن برج د خوارجو لخوا راغلل او علي رض ته یې اویل چې حکم او فیصله یوازې د الله تعالی د منلو وړ ده ،الله ته توبه اوباسه، او موږ خپل دښمن طرف ته ورولیږه چې له هغوی سره وجنګیږو او کنه په الله قسم موږ به ستا سره ترهغه وجنګیږو چې تر څو یا ته اصلاح نه شی او یا موږ کامیابی او دالله رضوان ته ونه رسیږو یعنې شهیدان شو (ددوی په ګمان).

عبدالله بن سخبره السلمي خارجي خپل ملګرو ته ډیر فصیح بلیغ بیان وکړواو په یوه برخه کې یې اویل: د دوی مخونه او څېټونه او تندي په تورو اوهئ تر هغې چې دوی د الله اطاعت وکړي که تاسې کامیاب شی نو د الله دین به په ځمکه قایم کړی او که شهیدان شوی نو د الله له رضا او جنت ته له تګ څخه کوم شی لوړ دی؟(البدایةوالنهایة ج۷ص۴۸۲)

خوارجو ته حضرت علي رض عبدالله بن عباس ورولیږلو خو حرقوص بن زهیر د اوسنیو لمسیانو په څیر خپلو کسانو ته اویل : تاسې دا سړی پیژنی؟ دا هغه سړی دی چې د ده او د ده د قوم په آړه الله تعالی فرمایي:بل هم قوم خصمون (بلکې دوی یو جګړه مار قوم دی ) وروسته یې علي رض ته جواب ولیږلو چې: که ته الله ته توبه اوباسې او پخپل کفر اعتراف وکړې او اوایې چې زه د الله له دین څخه مرتد شوی وم نو موږ به بیا ستا سره د جنګ په آړه مشوره وکړو یعنې جنګ به نه درسره کؤو.(تاریخ الطبري بتصرف ج۵ص۷۴ ،البدایةوالنهایة ج۷ص۴۸۳)

خوارجو خپلو ټولو همفکرانو ته خبر ورولیږلو چې ټول باید د نهروان ځمکې ته هجرت وکړي تر څو د دوی قوت یو ځای شي، په نهروان کې خوارجو د رسوال الله ص صحابي عبدالله بن خباب بن الارت چې هلته اوسیده ونیوه او ورته یې اویل چې ته د الله له دین څخه په دې وجه مرتد شوی یې چې د علي رض په تحکیم رضا یې، هغه یې په چاړه ذبح کړ (دسیرت علماء وایي فهم اول من سن الذبح بالسکین في القتل دوی لومړی ډله وه چې د ذبح رواج یې جاري کړ) دوی (خوارج) د ده ښځې ته راغلل هغه یې هم ذبح کړه او هغه حامله وه د هغې خیټه یې څیري کړه او هغه جنین (ماشوم) یې هم ذبح کړ.(البدایةوالنهایة بتصرف ج۷ص۴۸۵)

علي رض د دوی سره د جنګ کولو فیصله وکړه خو له هغې وړاندې یې د اتمام د حجت په خاطر دوی ته خبر ولیږلو چې که تاسې موږ ته زموږ د شهیدانو قاتلین وسپاری موږ به له تاسې څخه واپس شو، خو هغوی په جواب کې اویل : موږ د هغوی اوستا وینې حلالې بولو نو د دوی په قتل کې موږ ټول شریک یو، حرقوص بن زهیرخپلو ملګرو ته غږ کړ د دوی سره خبرې مه کوئ او د الله تعالی سره ملاقات ته ځان تیار کړئ د جنت په خوا منډې اوهئ او د هغه چا ګردنونه اوهئ چې دالله دین یې بدل کړی دی. (البدایةوالنهایة بتصرف ج۷ص۴۸۷)

حضرت ابو ايوب الانصاري صحابي هم په دې جنګ کې شريک ؤ، د امان بيرغ د ده په لاس کې ؤ، يو خارجي يې په نيزه اوهلو هغه چيغه کړه : هغه جنت ته چې پلنوالی يې د اسمانونو او ځمکو برابر دی ، ابوايوب ورته اوفرمايل: دروغ وايې د الله دښمنه بلکې هغه جهنم خوا ته چې ستاسې لپاره تيار شوی دی.

دخوارجو شوکت مات شو ډير يې اوژل شول څه يې توبه ګار شول او څه پخپله پليته عقيده مغلوبه په نورو ښارونو کې تقسيم شول، حافظ ابن کثيرؒ او امام ابن جريرالطبريؒ ليکي: چې عبدالرحمن بن ملجم چې ښايسته سپين رنګ او تر غوړونو ځنې او په تندي يې د سجدې نشان او برک بن عبدالله التميمي او عمرو بن بکرالتميمي چې درې واړه په تقوی او ډير عبادت مشهور ؤ پخپل مينځ کې مشوره وکړه چې بايد مسلمان د حضرت علي ،حضرت معاويه ، حضرت عمروبن العاص رضی الله عنهم له شره خلاص او د خپلو شهيدانو انتقام ترې واخلو.

عبدالرحمن بن ملجم اويل چې زه به د حضرت علي کار درته خلاص کړم، برک بن عبدالله اويل چې زما په غاړه معاويه شو، عمروبن بکر التميمي اويل چې زما په غاړه عمروبن العاص شو، موافقه وشوه چې هر يو به د رمضان په ۱۷ په خپل هدف بريد کوي.

عبدالرحمن بن ملجم کوفې ته راغلو او د کوفې په جامع جومات کې يې د عبادت په پلمه واړول او خپل راز يې هيچاته ځرګند نه کړ. په کلي کې يوه ښځه د قطام بن الشحنة په نوم چې ډيره ښايسته وه ؛ عبدالرحمن بن ملجم وليده او خپل هدف ترې هير شو او د هغې په عشق کې ډوب شو، هغې ته يې د نکاح پيغام ورولېږلو خو هغې پرې شرط کړه چې حضرت علي يې ورور او پلار وژلي دي نو که حضرت علي اوژني نکاح به ورسره وکړي چې ابن ملجم ورته خپل حال اوايه او ډاډ يې ورکړ چې د دهمدې هدف لپاره يې ډيرې ستړياوې ګاللي دي.

ابن ملجم دا راز له يوه بل کس سره چې د شبيب بن نجدة الحروري الاشجعي په نوم ؤ شريک کړ او ورته يې اويل چې آيا غواړې چې د دنيا او اخرت شرف درته حاصل شي؟ د علي وژل ، شبيب ورته اويل څنګه به ته په هغه قادر شې؟ ابن ملجم ورته اويل چې: زه د جومات په يو کونج کې ورته پټيږم که پرې قادر شوم نو د دنيا آخرت کاميابي به تر لاسه کړم ،که شهيد شوم نو هغه څه چې د الله تعالی سره دي، غوره دي د دنيا څخه، خو شبيب ورته اويل چې حضرت علي خو په اسلام کې سابقه لري او د رسول الله ص قريب دی نو زما سينه خو د ده وژلو ته نه خلاصيږي خو چون ابن ملجم چالاک ؤ او شبيب يې په مزخرفو دلايلو وغولاوه او له ځان سره يې شريک کړ.

ابن ملجم په حضرت علي رض حمله وکړه او هغه رض سخت ټپي شو شبيب په عين حال کې د يو کس لخوا اوژل شو او ابن ملجم ژوندی ونيول شو. ابن ملجم د حضرت علي رض په وړاندې ودرول شو هغه پوښتنه ترې وکړه چې ولې آی دالله دښمنه ستا سره ما احسان نه ؤ کړی ؟ ابن ملجم اويل:چې څلويښت ورځې مې الله تعالی ته زاری کولې چې زما په دې توره هغه کس اوژني چې تاته ډير ناخوښ وي. حضرت علي رض ورته اويل چې ستا دا دعا قبوله شوي او ته به پخپله په دې توره وژل کيږې.قاتله الله (البداية والنهاية بتصرف ج۷ص۵۴۳ تاريخ الطبري بتصرف ج۵ص ۱۴۳)

د خوارجو له پورته تفصيل څخه هدف دا ؤ چې معلومه شي چې داوسنيو خوارجو او د دوی د نيکونو ترمينځ څومره کامل تشابه وجود لري، هغوی حضرت علي کرم الله وجهه په وژلوچې د لوړو مناقبو او فضايلو خاوند ؤ الله ته نزديکت غوښتو،اوسني خوارج هم د هغو مجاهدينو په وژلو الله ته تقرب طلب کوي چې صليبيانو يې د وژلو لپاره په مليونونه ډالر ولګول، هلته هم دوی صحابه مرتد بلل حضرت علي رض يې مرتد باله اوسني خام فکره خوارج هم د دوی سوا ټول امت کافر بولي چې په وروسته ليکنو کې به په مستند ډول دا موږ ثابته کړو.

## دخوارجو په وژنه ولې دومره ټينګار؟

وړاندې مو په نبوي ص ارشاداتو کې ذکر کړل چې دوی بايد دعاديانو په څير اوژل شي ځکه په اسلام کې خوارج يواځينۍ ډله ده چې دوی خپل بدعت او ګمراهي د ټوپک او توري په زور په نورو منل غواړي، بل داچې کفار مسلمان د خپلو مادي ګټو په خاطر وژني او دوی د خپل پرمختګ په وړاندې خنډ بولي خو خوارج مسلمانان د يوې ايډيالوژۍ او عقيدې له مخې وژني او دا کار د ځان لپاره لوی سعادت بولي.

# دويم فصل

# داعش

## داعش له ابوبکربغدادي وړاندې،دابوعمرالبغدادي له لورې د امارت اعلان

امريکا لا په عراق يرغل نه ؤ کړی؛ چې يو اُردنی تبعه احمد فاضل نزال الخلايلة چې وروسته يې په ابومصعب الزرقاوي شهرت پيدا کړ، د سيستان بلوچستان له لارې عراقي کردستان ته ورسيده او هلته د خپلو ملګرو په تنظيمولو بوخت شو، ځکه هغه وخت داسې يقين ؤ چې امريکا به په عراق حمله کوي . عرب مجاهدين او په القاعده پورې تړلي کسان داسې يوې موقع ته په طمع ؤ چې له امريکايانو سره مخامخ وجنګيږي.

د امريکايي يرغل سره هم مهاله ابو مصعب د خپلو ملګرو د يوې ډلې سره يو ځای عراق ته ورسيدو او هلته يې لومړۍ د مجاهدينو په جلب او جذب پيل وکړ چې لږه موده وروسته دا نوم دومره رسنيز شو چې سهار او ماښام به د خبرونو سرټکی ؤ. نوموړي په عراق کې د ټولو هغو کسانو په مينځ کې چې د امريکايانو په وړاندې يې وسله پورته کړې وه د هماهنګۍ لپاره ډيرې هڅې وکړې او بن لادن سره له بيعت وروسته يې د قاعدة الجهاد في بلاد الرافدين په نوم تنظيم تاسيس کړ.

ابومصعب امريکايان ډير سرګردانه کړل چې بالآخره په ۲۰۰۶/۶/۷م په يوه کور کې د امريکايي طيارو په مټ شهيد شو. دا هغه وخت ؤ چې په عراق کې د وحشتونو وژنو لړۍ اوج ته رسيدلي وه د ابومصعب له شهادت وروسته ابوعمرالبغدادي او ابو حمزةالمهاجر د امير او نايب په توګه وټاکل شول.

دشيخ زرقاوي هڅه دا وه چې په عراق کې د امريکايي يرغل په خلاف جنګيدونکي ټول مجاهدين په يوه صف کې سره راټول کړي چې په همدې منظور د شورى المجاهدين په نوم مجاهدينو د ټولو ډلو يوه شورى رامنځ ته شوه، خو د ابومصعب د شهادت څخه وروسته په عراق کې جنګيدونکي مهاجر مجاهدين له قيادته څنډې ته کړل شول او د شورى المجاهدين غړو چې غوښنه برخه يې عراقيان ؤ د ابومصعب په ځير د يو مهاجر د امارت مخه ډب کړه.

شيخ اسامه بن لادن د زرقاوي له شهادت وروسته غوښتل چې په عراق کې د واک واګې بيا داسې يو کس لاس ته کړي چې په نوييمو کلونو کې د افغانستان په محاذ کې جنګيدلى وي او د القاعدې منهج(تګلاره)تعقيب کړي خو شيخ ابن لادن د مصلحت په بنياد د عراقيانو پريکړه ونه ننګوله او حامد داود محمد خليل الزاوي چې په ابو عمرالبغدادي يې شهرت لاره د نوي امير په توګه ومانه.

خليل الزاوي د شورى المجاهدين له لورې اميرالمؤمنين وټاکل شو او شورى المجاهدين له لوري په ۱۵/۱۰/۲۰۰۶م الدولةالاسلامية في العراق تر نامه لاندې د نوي دولت اعلان وشو،چې بيا هم د القاعدې مشر بن لادن نادیده ونيول شو او د اسلامي دولت په اعلان کې ترې مشوره ونه غوښتل شوه په داسې حال کې چې د ابوعمر البغدادي په غاړه کې د بن لادن بيعت ؤ.

دا مهال د عراقي فوځ جنرالانو د اسلامي دولت ليکو ته مخه کړه او اسلامي دولت يې هم په دې وجه هرکلى وکړ چې دا کسان له جنګي خِبرو او د سيمې په اړه بلدتيا څخه پوره برخمن ؤ. حجي بکر چې دعراق په فوځ کې لوړپوړى جنرال او د صدام د بعثي نظام د استخباراتو مخکښ افسر ؤ، يو له دې ډلې څخه ؤ چې د ابوعمر البغدادي سره يې پيژنګلوي پيدا شوه.

## د ابو عمر البغدادي دولت او په اړه يې شکايتونه

ابوسليمان العتيبي چې په عراق کې د زرقاوي له وخته د مجاهدينو عمومي قاضي ؤ او بيا د اسلامي دولت له اعلانه وروسته هم تر څه وخته پورې قاضي پاتې شو؛ وروسته له هغه له خپل منصب څخه معزول کړل شو چې د اسلامي دولت سره يې يو لړ منهجي اختلافات راوټوکيدل، دا هغه وخت ؤ چې په عراق کې جدي هڅې روانې وې ترڅو مهاجر مجاهدين له لوړو څوکيو څخه ګوښه کړل شي چې ځينې عراقيانو تنقيد کاوه چې څنګه يو سعودى ځوان چې عمر يې ۳۰ کالو ته نه رسيږي په اسلامي دولت کې د قضاء په تر ټولو لوړ منصب فايز وي.

ابوسليمان العتيبي معزول کړل شو اوپه ځاى يې د عراق د جبوري قبيلې يو کس ابواسحاق الجبوري وټاکل شو.ابو سليمان العتيبي افغانستان ته راغلو او دلته د امريکايانو سره په يوه مخامخ جګړه کې د احمد القحطاني سره يو ځاى شهيد شو.

ابوسليمان العتيبي د خپلې قضاء په دور کې شيخ اسامه ته يو خط وليږلو چې د دولت په اړه پکې شکايتونه شوي ؤ چې مونږ په لنډ ډول هغه مضمون ستاسې مخې ته ږدو:

په خط کې عتيبي له سلامه وروسته د شيخ بن لادن سره د ليدلو شوق څرګندوي او دهغه وضعيت څخه سرټکوي چې د زرقاوي له شهادت وروسته عراقي مجاهدين ورسره مخ دي. نوموړی د يو شمير هغه منهجي سرغوړونو يادونه کوي چې د زرقاوي له شهادت وروسته رامينځ ته شول.

نوموړی وايي:

رمادي هغه ښار ؤ چې د مجاهدينو د واک ساحه پکې پراخه وه، هلته وضعيت زموږ په ګټه ؤ خو کله چې هلته امارت اعلان کړل شو امريکايانو او د هغوی غلامانو يوازې په دې ښار کې تر ديرشو پورې امنيتي پوستې جوړې کړې او په ځای د دې چې د امارت اعلان وضعيت د فتحې په لور سوق کړي په مجاهدينو کړۍ نوره هم تنګه شوه .

موږ د القاعدې د سياسي طرزالعمل څخه په تقليد د دولت يا امارت اعلان نه کولو او د امارت اعلان مو د القاعدې سره له توافق پرته د اصولو څخه سرغړاوۍ باله خو چې کله دا کار تر سره شو نو موږ له يوې بلې فاجعې سره هم مخ شو هغه دا چې د دې امارت امير ابوعمر البغدادي وټاکل شو چې په تنظيم کې يې د يوه عادي فرد حيثيت لاره. ما د دولت د اعلان په سر له ډيرو ناندريو وروسته ابوحمزه ته اويل(مراد يې ابوحمزه المهاجر دی): نو تاسې د دې دولت امير څوګ ټاکلی؟ هغه راته په جواب کې اويل چې موږ تر اوسه د امير په هکله موافقې ته نه يو رسيدلي چې وروسته په ناڅاپي ډول موږ د بغدادي د اعلان سره مخامخ شؤو.

د حِلف المطيبين له تړونه وروسته د دولت په تشکيل کې هر چاغ او ډنګر،روغ او ناروغ راټول شول چې د قبايلو اکثرو مشرانو او ځينو تش په نوم ګروپي تشکيلاتو په دې شرط له دولته ملاتړ اعلان کړ چې دوی ته به لوړ منصبونه ورکول کيږي چې همداسې وشول او د مناصبو د تقسيم لپاره له دولته د هغوی ملاتړ په پام کې ونيول شو نه منهج. د بيلګې په ډول الرجال النقشبندية چې نقشبندي صوفيان دي د دولت څخه د ملاتړ په بدل کې د کرکوک او موصل د ځينو سيمو واک دوی ته ورکړل شوی (په داسې حال کې چې په نوره نړۍ کې د داعشيانو په هاند نقشبنديان او په عموم کې صوفيان مشرکين او کافران دي)

عُتَيبي وايي:د ابوعبدالرحمن الفلاحي چې د اميرالمؤمنين نايب دی د هغه د کسانو له لورې له يوه عراقي تاجر څخه ۲۶ لارۍ مال ضبط کړل شو چې تاجر موږ ته عريضه وړاندې کړه موږ چې کله هغه ته حال وليږه هغه اويل چې دا مال د روافضو دی خو لږه موده وروسته واضحه شوه چې مال د يوه عراقي سني تاجر دی. موږ بيا له هغه څخه مطالبه وکړه چې فلاحي راته اويل چې په نوموړي تاجر د اسلامي دولت قرض دی له همدې امله ترې دا لارۍ نيول شوي خو چې موږ څيړنه وکړه هغه قرض آن د يوې لارۍ قيمت ته هم نه رسيده، موږ بيا هغه ته جواب وليږه چې د وروستي جواب په توګه يې راته اويل چې اسلامي دولت دا مال له دې تاجر څخه تعزيرا نيولی، موږ بيا هم ابوحمزه ته موضوع پورته کړه چې هغه په جواب کې راته اويل چې شيخ سليمانه : ته په دومره وړو وړو موضوعګانو خپل رعب او هيبت له لاسه مه ورکوه.

عتيبي په دې خط کې د عراق د کرمه ولايت قاضي د اهل السنة له منهجه منحرف بولي او وايي: ابوهاجر د خپلو ځينو نظرياتو له امله د ګمراهۍ تر پولې رسيدلی، نوموړی وايي چې په عراق کې د امارت اعلانول په داسې يوه حالت کې چې موږ لا له وړاندې د اميرالمؤمنين ملا عمر بيعت په غاړه کې لرو؛هيڅ شرعي صِبغه نه لري او په يوه وخت کې د دؤو اميرانو انتخاب دی

(رسالةالشيخ ابوسليمان العتيبي للقيادة في خراسان) Justpaste.it/do3r

## دزرقاوي له شهادت وروسته په اسلامي دولت کې د تکفيري فکر نفوذ

د تکفير په اسبابو او عِلّلو به وروسته وغږيږو خو په معاصرو اسلامي خوځښتونو کې د تکفير لوی لامل د مستبدو رژيمونو ظلم دی چې د دې نهضتونو د غړو په حق کې دوی ترسره کړی دی په خاص ډول د صليبي مؤتلفينو هغه وحشتونه چې دوی په مستعمره هيوادونو کې ترسره کړل . دعراق په ابوغريب کې د امريکايانو ظلمونو د عراقي ځوانانو فکرونه د تکفير خواته سوق کړل ځکه تکفير د هغه عقيدوي صلابت او فکري عُقدو څخه مينځ ته راځي چې يو ظالم، زورواک، مستبد يې د يوه مظلوم په حق کې ترسره کوي چې په نتيجه کې يې هغه معذَّب کس عقده من کيږي او په انتقام کې له فکري انحراف سره مواجه کيږي دا په داسې حال کې ده چې دا ځوانان په رياکشن کې د خپلې علمي خامۍ له وجې له شرعي پولو آوړي.

په عراق کې امريکايي زندانونه د تکفيري فکر محور ؤ هلته خلک توهين شول، کرامت يې تر ښپو لاندې شو، عزتونه يې تار تار شول، له ډول ډول شکنجو ربړونو سره مواجه شول چې بالمثل عراقي ځوانان له زندانه د راخلاصيدو وروسته د ټولو انتقامي اعمالو په هکله يو سخت دريځ خپل کړ.

که د عراق حالت په دقت وڅيړل شي يوه خبره روښانه کيږي؛ چې په عراق کې امريکايي اشغالګرانو په لوی لاس فرقه واريت ته په لمن وهلو عراقيان په سني او شيعه اويشل او يو د بل په مقابل کې يې ودرول چې په سني آړخ کې تکفير خپلې لوړې کچې ته ورسيدو او عيناً په شيعه آړخ کې يې د عامو سنيانو په خلاف د کرکې زړي وکرل هغه وه چې شيعه ګانو د سنيانو په حق کې له هيڅ ډول زور زياتي څخه دريغ ونکړ.

د عراقي سني مقاومت په مينځ کې داسې ډيری ځوانان راټول شول چې د کفر فتوی يې نغده په جيب کې وه بلکې د دې مقاومت د سر سړي هم په کامل ډول په تکفيري فکر سمبال ؤ. ابوعمر البغدادي چې د اميرالمؤمنين لقب يې لاره حماس ډله مرتده بلله او په خلاف يې د جهاد او مبارزې ټټر ډباوه چې د همدې فوت شوي امير ميراث اوسنو وارثينو ته پاتې شو او حماس يې کافر اوباله او په خلاف يې عملا سنګر ونيؤو

## تکفیر څه معنی؟اسباب یې څه دي ؟حکم یې څه دی؟

تکفیر د تفعیل له باب څخه دی چې د باب تفعیل یو خاصیت نسبت د فاعل دی ماخذ د باب ته لکه؛ کفَّرته چې معنی یې ده نَسَبْتُه الی الکفر نو تکفیر معنی ده یو څوک کفر ته منسوبول ،چې په شرعي اصطلاح کې یو څوک کفر ته منسوبول یا کافر بللو ته تکفیر ویل کیږي.

تکفیر په مطلق ډول قبیح نه دی، تکفیر د اسلام د قلعې لپاره د یو مظبوط دیوال په څیر دی،اسلام د یوې کنډوالې په څیر نه دی چې وتونکی او ننوتونکی یې تر هیڅ محدودیت لاندې نه دی بلکې دلته حدود شته چې په هغې سره یو سړی په دې قلعه کې موړ یا داخل یا خارج بللی شو. اسلام داسې یو مَحوطه نه ده چې یو څوک دې ورته راننوځي نو بیا یې وتل نشته؛ نه بلکې داسې معاییر شته چې پر بنسټ یې یو څوک له دې قلعې خارج بللی شو خو هغه معاییر د یو فرد یا تنطیم یا زمان په واک کې نه دی او نه څوک د تکفیر لپاره له ځانه اصول مقررولی شي.

د عثماني خلافت په راپرځولو کې د هغو خاینانو لوی لاس ؤ چې په تکفیري فکر سره یې په دې بهانه دا خلافت راړنګ کړ چې ګواکې دا اسلامي خلافت نه دی بلکې د خلافت حاملین یې مشرکان بلل. د حرمینو نجدي متولیانو د نجدي فکر په خورولو سره ډیر مسلمان مشرکان اوبلل او دهمدې فکري انحراف له امله دا دی دوی مسلمانان په مُختلَفٌ فیها مسایلو کافر بولي او وینه یې حلاله بولي.

د تکفیر درې مهم اسباب دي چې (ا) جهل (با) بې ځایه افراطیت او (ج) د مستبدو او ظالمو مظالم او وحشتونه دي. هغوی چې له نبوي ص له سیرته ناخبره دي همدا خامي یې د دې سبب شوه په قرآن او حدیث کې د وعید ټول موارد په کفر حمل کړي همدا ډول الله تعالی وایي: وکذالک جعلناکم امةً وسطاًالخ چې اسلام موږ ته د اعتدال او منځ روېې لار راښایي خو هغوی په دین کې له بې ځایه افراط په وجه له سمې لارې ګمراه شول. همدا ډول د تکفیري فکر په خورولو کې د اشغالګرانو او د هغوی د ګوډاګیانو هغه مظالم او وحشتونه هم لوی رول لري چې دوی د مسلمانانو په وړاندې ترسره کړي دي.

د حنفي فقه علماء په یو چا د کفر په حکم کولو کې ډیر احتیاط کوي ځکه سلف په دې حکم کې ډیر محتاط په دې وجه ؤ چې که په تکفیر کې بیړه وشي یا دا حکم هرچاته په لاس ورکړل شي په امت کې به د قتل او قتال دروازه خلاصه شي او هر څوک به خپل مخالف په سستو او وهمي دلایلو کافروي.

له همدې امله یو د تکفیر عام احکام دي او یو تنزیل د هغه حکم دی په یو معین باندې چې د دواړو ترمینځ توفیر وجود لري، هغه داسې:

مور د بیلګې په ډول وایو، د فرض لمانځه له فرضیت څخه انکار کفر دی خو که موږ وایو چې فلانی سړی کافر دی ځکه د فرض لمانځه له فرضیت څخه منکر ده نو یواځې همدومره بسنه نه کوي بلکې دا حکم باید له څو مرحلو تیر شي، چې دا حکم په دې شخص راکوزولو کې باید څو شیان په پام کې ولرو.

د تکفیر لپاره علماء څلور شرطونه وړاندې کوي:

.دا ثبوت چې دا ویل یا کول یا عقیده لرل یا نه کول د قرآن او سنت په استناد کفر دی.

.دا ثبوت چې دا کار له مکلف څخه صادر شوی.

.د حجت او دلیل رسیدنه.

.دا ثبوت چې په دې معین شخص کې به موانع التکفیر (د کفر حکم منع کونکي) نه وي موجود.

موانع د تکفیر څلور دي

.جهل : که نوموړی کس د دې حکم په فرضیت ناخبره ؤ. دلیل یې د انواط حدیث دی چې اصحاب السنن نقل کړی چې صحابه کرامو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اویل: إجعل لنا ذات أنواط كما لهم ذات أنواط. دلته هم صحابه چون له دې حکم ناخبره ؤ، نو د الله رسول په دې خبره دوی کافران ونه بلل.

.خطاء: له نوموړي کس په خطایې کې داسې څه صادر شول چې سبب د کفر وي. دلیل یې د ناقې مشهور حدیث دی چې کله هغه په اوبو او خوراک بار اوښه پیدا کړي نو له ډیرې خوشالی اوایي: أنت عبدي وأنا ربك

. اکراه: نوموړی کس چا مجبور کړی ؤ چې کفر وکړي. دلیل یې (إلا من أكره وقلبه مطمئن بالإيمان)

.تأویل: نوموړي کس تأویل کولو. دلیل یې د قدامه بن مظعون حدیث ده چې د حضرت عمر رض په خلافت کې یې د حلال ګڼلو په عقیده شراب وچیښل ځکه نوموړي د دې آیت غلط تآویل کولو : ليس على الذين أمنوا وعملوا الصالحات جناح الخ:

نو اوس موږ ویلی شو چې له فرض لمانخه انکار کفر دی خو که وایو چې فلانی کس ځکه کافر دی چې له فرض لمانخه منکر دی نو باید موږ دا پورتني شروط پوره کړي وي.

چې ایا دلته خو د تکفیر موانع شتون نه لري؟ دا کس چې موږ پرې د کفر حکم کوؤ آیا عقل یې سالم دی؟ لیونی یا بې هوشه خو نه دی؟ د دې فرضو د فرضیت تأویل کوؤنکی خو نه دی؟ یا د دې فرضو له فرضیته خو بې خبره نه دی؟ یا نوموړی خو د چا لخوا تر فشار لاندې نه دی؟ یا له نوموړي خو دا قول په غلطۍ کې نه دی صادر شوی؟

خو د بغدادي خوارج دا اصول نه پيژني هغوی په سوريه کې لومړی د سوريې ائتلاف او هيئة الارکان کافر اوبلل ځکه چې د بشار په وړاندې له امريکا کومک اخلي او په سوريه کې ديموکراتيک نظام غواړي، وروسته يې ټولې هغه جهادي ډلې لکه الجبهة الاسلامية، احرارالشام، صقورالشام يا نور په دې دليل کافر اوبلل چې دوی د هيئة الارکان او جيش الحر سره د بشار په ضد په ځينو عملياتو کې ګډون کړی او جبهة النصرة له دې امله مرتد بولي چې هغوی تل د احرارالشام سره په عملياتو کې ګډون کوي او د داعش په ضد ډيری عمليات په ګډه پر مخ وړي

## عدناني په يوه غږيز بيان کې داسې وايي:

کله چې د هيئة الارکان او ائتلاف حکم معلوم شو، موږ ته د الجبهة الاسلامية په اړه اول ماتونکی د اسلام ثابت شو چې هغه د هيئة الارکان مرتدينو سره د دوی دوستي ده او په هغه څه موافقت دی چې دا مرتدين پکې واقع دي او هغه د دوی غړيتوب دی په هيئة الارکان کې چې يا دوی خپله هلته موجود دي لکه ابوعيسی او زهران علوش او يا يې نمايندګان دې مجلس ته ليږلي دي لکه حسان عبود چې ابوالزبير هلته د ده په موافقه تللی دی، نو حسان عبود په دې کفر رضا دی نو د ده حکم هم د کفر شو، ځکه څوک چې د هيئة الارکان سره کومک کوي، د دوی سره دوستي کوي، د دوی د بيرغ لاندې جنګيږي ټول د لانديني آيت په غوښتنه کافران دي: ومن يتولهم منكم فانه منهم.

دلته يې اوګورئ؛ لومړی خو آيا د هيئت الارکان کفر د کوم رباني عالم له قوله ثابت دی که د بعث د کوم جنرال په خوله؟ بيا په همدې غلط بنياد نور ورقياسوي الجبهة الاسلامية په دې کافر بولي چې د دوی سره يې د بشار په مقابل کې ائتلاف کړی بيا احرارالشام په دې کافروي چې هغوی د جبهې سره ائتلاف کړی او جبهة النصرة په دې چې هغوی بيا احرارالشام مؤتليفين دي.

خو کله چې حسان عبود د هيئة الارکان له ائتلافه خپل وتل اعلان کړل نو د بغدادي خوارجو بيا هم ونه منله بلکې له نوموړي څخه يې غوښتنه وکړه چې په خپل کفر دې اعتراف وکړي او د هيئة الارکان د کفر اعلان دې وکړي، په داسې حال کې چې د بعث په سلګونه کمونست جنرالان په اسلامي دولت کې لوړ لوړ منصبونه لري حتی د مجلس الشوری غړي هم دوی دي، خو هغوی نه د خپل پخواني کفر اعلان وکړ او نه يې په علني ډول توبه اوباسله.

امام ابوالملطي وايي: ثم زاد معتزلة بغداد على معتزلة بصرة: أن الشاک في الشاک والشاک في الشاک الى الأبد الى مالانهاية له کلهم کفار؛ وسبيلهم سبيل الشاک الاول.

ژباړه: د بغداد معتزله د بصرې په معتزله ؤ دا ورزياتوي چې شک کونکی په شک کونکي کې همدا ډول تر ابده پورې ټول کفار دي او حکم يې د هماغه لومړي شاک دی(التنبيه والرد على اهل الاهواء والبدع ج۱ص۴۰)

شيخ عبدالقاهر بيا داسې وايي: قالت المعتزلة: والشاک في كفره كافر، وكذالک الشاک في الشاک لا الى نهاية. بل ځای نوموړی د مرجئه ؤ په اړه وايي: والشاک فيه كافر والشاک في الشاک ايضا كافر ثم كذالک الى الابد.(الفرق بين الفرق ج۱ص۱۵۲، ۱۹۳)

که د بغدادي د خوارجو ميډيا وخارل شي نو د دوی ټول تکفير په همدې اصولو بناء دی بلکې د بغدادي په تکفيريانو کې تکفير د جنون تر کچې رسيدلی چې د دوی څخه يو جدا شوي داعشي په خپلو څرګندونو کې ويلي چې د داعش ځينې غړي د تکفير په اړه د جنون تر حده رسيدلي دي.

د تکفير د حکم په آړه به دومره اوايو چې د سلفو په عباراتو کې اصلاً هغه اصطلاحات وجود نه لري چې معاصر تکفيريان يې کاروي. له دين څخه اوؤښتل چې د فقهاؤ په اصطلاح کې ورته ارتداد وايي بايد د شرعي محکمې له لوري ثابت شي او قاضي بايد حکم وکړي چې دا کس مرتد شوی او که په کوم ځای کې شرعي قاضي وجود نه لري بايد هغه علماء چې د فتوی اهل وي دا حکم په يو چا ورکړي. خو د يو فرد يا ډلې صلاحيت دا نه دی چې د يو مسلمان په آړه دې د ارتداد فتوی صادره کړي.

ابو ذر رض له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې وېې فرمايل: لايرمي رجلا رجل بالفسوق ولايرميه بالكفر إلا إرتدت اليه إن لم يكن صاحبه كذالك. رواه البخاري

ابن دقيق العيد د دې حديث لاندې داسې ليکي: وهذا وعيد عظيم لمن أكفر أحد من المسلمين وليس كذالک، وهذا ورطة عظيمة وقع فيها خلق كثير من المسلمين، ومن المنتسبين الى السنة وأهل الحديث لما أختلفوا في العقائد، فغلظوا على مخالفيهم وحكموا بكفرهم (أحكام الإحكام شرح عمدة الأحكام ج۴ص۷۶)

ژباړه:رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل: يو سړی بل په فسق يا کفر نه تورنوي مګر همدا فسق او کفر ورته راګرځي، که دا عمل پکې نه ؤ. ابن دقيق العيد ترې لاندې ليکي: دا د هغه چا لپاره چې يو مسلمان ته د کفر نسبت کوي، يوه لويه زورنه ده، په دې لوی مصيبت کې ډير مسلمانان چې سنتو او اهل حديثو ته يې نسبت کيږي واقع دي، دوی خپل مخالف سره له سختۍ کار اخلي او په هغه د کفر حکم کوي.

علامه ابن تيمية داسې وايي: الكفر حكم شرعي ملتقى عن صاحب الشريعة، والعقل قد يُعلم به صواب القول وخطأه، وليس كل ما كان خطأً في العقل يكون كفراً في الشرع، كما أنه ليس كل ماكان صواباً في العقل، تجب في الشرع معرفته.

ژباړه:کفرداسې شرعي حکم دی چې د شارع له لوري راښودل شوی دی، په عقل پورې تړاؤ نه لري ځکه کم ځله د يوې خبرې ښه والی او بدوالی معلوميدلی شي، داسې نه ده چې عقل يو کار خطاء اوبولي، هغه دې کفر وي يا که عقل يو کار ښه اوبولي نو په شريعت کې دې ښه وي.

(درء تعارض العقل والنقل جـ۱ صـ۲۴۲)

ابن الوزير داسې وايي: إنّ التكفير سمعيٌ محضٌ لامدخل فيه للعقل, وإن الدليل على الكفر والفسق لايكون إلا سمعياً قطعياً: تکفير فقط د شارع څخه په اوريدو په پورې تړلې دی، د يو چا د کفر او فسق دليل يواځې قاطع او له شارع څخه اوريدل شوی کيدلی شي.(العواصم و القواصم ج۴ص۱۷۹،۱۷۸)

خو د بغداد خوارج په تکفير دومره زړور دي چې حتی خپل مخالفين په حسناتو هم کافروي.

د (فَقَدْ باء به احدهما ) په مقتضی که يو چا مسلمان ته د کافر نسبت وکړ نو پخپله کفر هغه ته واپس کيږي بناءا سلفو د کفر په فتوی کې ډير له احتياطه کار اخيستو او کوشش به يې کاوه چې يو څوک کفر ته منسوب نه شي خو د عراق خلفو بيا کفر ته د مسلمانانو منسوبول يو عادت ګرځولی هغوی آن ملاعمر او اسامه بن لادن هم کافر بولي.

## د (من لم يکفرالکافر)قاعده

د بغدادي خوارج له دې قاعدې څخه په استفادې، د امت په لويه ډله د کفر حکم کوي. هغوی چې عام شيعه ګان کافر نه بولي، هغوی چې ډيموکراسۍ کې ووټ ورکونکي او کانديدان دواړه کافر نه بولي، هغوی چې وضعي محاکمو ته د فيصلو لپاره تلونکي کافر نه بولي، د بغدادي حروريان يې د دې قاعدې په استناد کافروي، دوی وايي: څوک چې کافر ته کافر نه وايي يا يې د يوه کافرپه کفر کې شک وي هغه په خپل کافر ګرځي.

خو آيا دا قاعده د امت د عالمانو تر مينځ څومره مسلّمه ده؟

قاضي عياض په خپل کتاب الشفاء کې ليکي: "وَلِهَذَا نُكَفِّر من لم يُكَفِّر مَنْ دَانَ بِغَيْرِ مِلَّةِ الْمُسْلِمِينَ مِنَ الْمِلَلِ.. أَوْ وَقَفَ فِيهِمْ، أَوْ شَكَّ، أَوْ صَحَّحَ مَذْهَبَهُمْ.. وَإِنْ أَظْهَرَ مَعَ ذَلِكَ الْإِسْلَامَ وَاعْتَقَدَهُ وَاعْتَقَدَ إِبْطَالَ كُلِّ مَذْهَبٍ سِوَاهُ. فَهُوَ كَافِرٌ بِإِظْهَارِهِ مَا أَظْهَرَ مِنْ خِلَافِ ذَلِكَ".وروسته يې دليل بيانوي: "لِقِيَامِ النَّصِّ وَالْإِجْمَاعِ عَلَى كُفْرِهِمْ، فَمَنْ وَقَفَ فِي ذَلِكَ فَقَدْ كَذَّبَ النَّصَّ". امام نووي په روضة الطالبين کې ورته نظر وړاندې کوي: مَنْ لَمْ يُكَفِّرْ مَنْ دَانَ بِغَيْرِ الْإِسْلَامِ كَالنَّصَارَى، أَوْ شَكَّ فِي تَكْفِيرِهِمْ، أَوْ صَحَّحَ مَذْهَبَهُمْ، فَهُوَ كَافِرٌ، وَإِنْ أَظْهَرَ مَعَ ذَلِكَ الْإِسْلَامَ وَاعْتَقَدَهُ".امام بهوتي په کشاف القناع کې داسې وايي: "فهُوَ كَافِرٌ؛ لِأَنَّهُ مُكَذِّبٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: {وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الإِسْلامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ}".

چې د ټولو خلاصه داده چې څوک چې کافر ته کافر نه وايي د قرآن تکذيب کوي ځکه قرآن يهودو او نصاراؤ او د نورو کفري اديانو واله کافر کړي نو دوی ته کافر نه ويل له همدې نصوصو انکار دی. خو په دې قاعده کې له کافر څخه کوم کافر مراد دی؟

په دې قاعده کې له کافره مراد هغه کافر دی چې کفر يې مجَمع عليه وي يعنې د ده په کفر د ټول امت اتفاق وي لکه يهود، نصارى، وثنيان، قرامطه، بهايان، قاديانيان،له زيديه او جعفريه ؤ ماسوا ټول هغه شيعه ګان چې قرآن ناقص بولي، ام

المؤمنين باندې تهمت لګوي يا داسې نور...... او دا قاعده د فقهاؤ په نصوصو استثناءات هم لري چې موږ وړاندې د تكفير په موانعو کې پرې خبرې وکړې.

امام ابن أبي العز الحنفي په مشهور کتاب العقيدة الطحاوية کې داسې ليکي: ولأن الشخص المعين يمكن أن يكون مجتهدا مخطئا مغفورا له، أو يمكن أن يكون ممن لم يبلغه ما وراء ذلك من النصوص، ويمكن أن يكون له إيمان عظيم وحسنات أوجبت له رحمة الله، كما غفر للذي قال: إذا مت فاسحقوني ثم ذروني، ثم غفر الله له لخشيته، وكان يظن أن الله لا يقدر على جمعه وإعادته، أو شك في ذلك. لكن هذا التوقف في أمر الآخرة لا يمنعنا أن نعاقبه في الدنيا، لمنع بدعته، وأن نستتيبه، فإن تاب وإلا قتلناه. ثم إذا كان القول في نفسه كفرا قيل: إنه كفر، والقائل له يكفر بشروط وانتفاء موانع، ولايكون ذلك إلا إذا صار منافقا زنديقا. فلا يتصور أن يكفر أحد من أهل القبلة المظهرين الإسلام إلا من يكون منافقا زنديقا. وكتاب الله يبين ذلك، فإن الله صنف الخلق فيه ثلاثة أصناف: كفار من المشركين ومن أهل الكتاب، وهم الذين لا يقرون بالشهادة، وصنف المؤمنون باطنا وظاهرا، وصنف أقروا به ظاهرا لا باطنا. وهذه الأقسام الثلاثة مذكورة في أول سورة البقرة. وكل من ثبت أنه كافر في نفس الأمر وكان مقرا بالشهادتين. فإنه لا يكون إلا زنديقا، والزنديق هو المنافق.

وهنا يظهر غلط الطرفين، فإنه من كفر كل من قال القول المبتدع في الباطن، يلزمه أن يكفر أقواما ليسوا في الباطن منافقين، بل هم في الباطن يحبون الله ورسوله ويؤمنون بالله ورسوله وإن كانوا مذنبين، كما ثبت في صحيح البخاري، عن أسلم مولى عمر رضي الله عنه، عن عمر: «أن رجلا كان على عهد النبي صلى الله عليه وسلم كان اسمه: عبد الله، وكان يلقب: حمارا، وكان يضحك رسول الله صلى الله عليه وسلم، وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم قد جلده من الشراب، فأتي به يوما، فأمر به فجلد، فقال رجل من القوم: اللهم العنه! ما أكثر ما يؤتى به! فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا تلعنوه، فوالله ما علمت، إنه يحب الله ورسوله». وهذا أمر متيقن به في طوائف كثيرة وأئمة في العلم والدين، وفيهم بعض مقالات الجهمية أو المرجئة أو القدرية أو الشيعة أو الخوارج. ولكن الأئمة في العلم والدين لا يكونون قائمين بجملة تلك البدعة، بل بفرع منها. ولهذا انتحل أهل هذه الأهواء لطوائف من السلف المشاهير.

فمن عيوب أهل البدع تكفير بعضهم بعضا، ومن ممادح أهل العلم أنهم يخطئون ولا يكفرون.

(شرح العقيده الطحاوية لإبن أبي العز الحنفي ج١ ص٣٠٠)

د دې ژباړه ليکل غواړي

**دريم فصل**

# د داعش تشکيل

داعش يا اسلامي دولت په خپل تشکيل کې داسې څيرې لري چې د هغوی سابقې ته په پام هغوی به هيڅ کله د اسلامي امت د خيرښيګڼې او يووالي لپاره قدم پورته نه کړي. د داعش په تشکيل کې د صدام د پوځ بعثي کمونستانو ته لوړې څوکۍ ورکول مورد د تنقيد ځکه دی چې که رښتيا همدې مجرمينو توبه ايستلې وي نو د مقرره ضوابطو او اصولو له مخې داسې کسان بايد تر څه مودې پورې وڅارل شي؛ لوړې څوکۍ خو بايد په هيڅ صورت ورته عطاء نه کړل شي خو چون اسلامي دولت په عراق کې د اشرف غني د دولت په څير د يوې معاملې له لارې رامينځ ته شو نو همدا بعثي کمونستان پکې واک ته ورسيدل .

**(۱)ابوبکر البغدادي** :عمومي مسئول يا د دوی په اصطلاح (القايد العام) چې دوی ورته د خليفه لقب ورکړی، د ۴۷ کلن بغدادي خپل نوم ابراهيم عواد ابراهيم عبد المؤمن علي البدري دی، نوموړی د دواعشو په ګمان بوبدري د سامراء د قريشي حسيني قبيلې څخه دی چې اهل بيت دي. هغه دصدام حسين د کمونيستي رژيم په دوران کې؛هلته چې په هر نوع اسلامي خوځښت مرګانی بنديز ؤ نوموړی لومړی د سامراء د احمدبن حنبل د جامع جومات امام بيا د بغداد د طوبچي د کبيسي د جامع جومات خطيب او امام ؤ. له امريکايي اشغال وروسته په ۲۰۰۳/م کال نوموړی بيا هم په فلوجه ښار کې د يو مسجد امام ؤ. په ۲۰۰۴/۱/۴م کال کې د امريکايي قواؤو لخوا په دې تور چې د ائتلافي قواؤ په ضد يې خرګندونې کړي ونيول شو او د بوکا په امريکايي زندان کې بندي شو چې په ۲۰۰۶م کال د سپتمبر په مياشت راخوشې شو او له اسلامي دولت سره يوځاي شو.



د نوموړي پلويان وايي چې هغه د تکريت په جامعه کې په شرعياتو کې استاذ ؤ او په شرعياتو او تجويد کې يې دکتورا کړې ده خو په آړه يې دوی تر اوسه هيڅ اسناد نه دي وړاندې کړي او دا هم د دوی د نورو بې شميره افواهاتو او د شيعه ګانو او يهودانو د بې اساسه اطراءګانو په څير دي .

## ابوبکربغدادي قريشي او حسيني نه دی

د دواعشو مفتي ترکي البنغلي چې په ابوهمام الاثري مشهور دی پخپل کتاب (مَدُ الايادي لبيعة البغدادي) کې بغدادي د اهل بيتو څخه بللی او هغه يې قريشي او حسيني بللی؛ په داسې حال کې چې دا صرف د مسلمانو ځوانانو د تغرير لپاره د دواعشو يوه حِربه ده څو هغوی په دې وغولوي چې ګواکې بغدادي ځکه د موعود خلافت اهل دی چې قريشي دی. ترکي البنغلي د بغدادي نسب داسې بيانوي: هغه د عرموش لمسی دی عرموش بن علي بن عيد بن بدري بن بدرالدين بن خليل بن حسين بن عبدالله بن ابراهيم الاواه بن الشريف يحيى عزالدين بن الشريف بشير بن ماجد بن عطية بن يعلى بن دويد بن ماجد بن عبدالرحمن بن قاسم بن الشريف ادريس بن الزكي بن علي الهادي بن محمد الجواد بن علي الرضا بن موسى الكاظم بن جعفرالصادق بن محمد الباقر بن علي زين العابدين بن الحسين بن علي بن ابي طالب وفاطمة بنت محمد صلى الله عليه وسلم. (مَدُ الايادي لبيعة البغدادي صـ٣)

پورته نسب د بغدادي نه دی بلکې دا د عراق د اهل سُنَّتو د مشهور عالم سيد شريف صبحي بن جاسم نسب دی چې دواعشو له هغه څخه غلا کړی او په خپل مشر پورې يې تړلی دی. سيد شريف ابوعبدالرحمن صبحي القرشي الحسيني د سامراء اوسيدونکی ؤ چې په ١٣٥٥ هـ کې پيدا شوی او په ١٤٣٤ هـ کې وفات شوی دی. دهغه نسب په دې ډول دی :المُحدّث المحقّق السيد شريف صُبحي بن السيد جاسم بن حُميد بن حمد بن صالح بن مصطفى بن حسن بن عثمان بن دَوْلة بن محمد بن بَدري بن عرموش بن علي بن سعِيد بن بدري بن بدرالدين بن خليل بن حسين بن عبدالله بن ابراهيم الاواه بن الشريف يحيى عزالدين بن الشريف بشير بن ماجد بن عطية بن يعلى بن دويد بن ماجد بن عبدالرحمن بن قاسم بن الشريف ادريس بن الزكي بن علي الهادي بن محمد الجواد بن علي الرضا بن موسى الكاظم بن جعفرالصادق بن محمد الباقر بن علي زين العابدين بن الحسين بن علي بن ابي طالب وفاطمة بنت محمد صلى الله عليه وسلم.(تاريخ علماءبغداد صـ٢٨٥ ،أعلام المدرسةالحديثية البغدادية المعاصرة صـ١٣ ،نعمة المنان في اسانيد شيخنا ابو عبدالرحمن صـ١١)

دلته د ابوبکر بغدادي او عرموش تر مينځ دولس نيکونه حذف شوي ځکه بغدادي اوس ٤٧ کلن دی او سيد صُبحي په ٨٠ کلنۍ کې وفات شوی نو بغدادي ته په نسبت صبحي د ده د نيکه په مرتبه جوړيږي. نو پلار او نيکه دوه دا شول او لس کسان هلته نور هم ورک دي او نه دي ياد شوي. که بغدادي رښتيا د عرموش له لارې د حسين رض له اولاده وي ولې دا دولس کسان نه دي ياد شوي او د ٨ هجري پيړۍ نيکه ته توپ اچول شوی دی؟ دويمه لويه غلطي چې دواعش غواړي پرې خلک خطاء کړي هغه د عرموش بن علي بن سعيد په ځای د عرموش بن علي بن عيد راؤړل دي. دوی غواړي په نسب کې خلط رامينځ ته کړي په داسې حال کې چې د نسب علماؤ په دې اتفاق دی چې د بدري بن بدرالدين يو ځوی ؤ د سعيد په نوم (موسوعة العشاير العراقية ج٥ ص ١٧ )

مورږ تولو دواعشو ته چیلنج ورکوو چې د خپل موهوم خلیفه نسب دې په سند سره تر عرموش ثابت کړي حسین رض خو په ځای پرېږده دواعش ولې د خپل خلیفه په نسب کې دومره لوی درواغ وایي؟ جواب ډېر ساده او واضح دی. یو څوک چې د خپل تخت او تاج، جاه او جلال، عیش او عشرت، په خاطر د لکونو مسلمانانو وینه تویولی شي نو هغه دا دروغ نه شي سره غوټه کولی!دوی په همداسې موهومو کاذبو ادعاؤ د مسلمانو ځوانانو عواطف خپلوي او غواړي د دوی پاک جذبات د خپلو شومو مَطَامِحو لپاره استعمال کړي.

امام بخاري په خپل سند سره له ابو ذر څخه نقل کوي: عن ابي ذرٍ رض انه سمع النّبيَّ صلى الله عليه وسلم يقول: ليسَ من رجلٍ إدَّعى لِغير أبيه .وهو يعلم .إلا كفر، ومن إدعى قوماً ليس له فيهم نسبٌ فليتبوأ مقعده من النار. ژباړه :له ابو ذر رض څخه روایت دی چې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه یې اوریدلي دي چې فرمایل یې: نشته هیڅ کس چې له خپل پلاره سوا بل پلار ته ځان منسوبوي مګر کافر ګرځي او څوک چې داسې یو قوم ته ځان منسوب کړي چې د ده نسب په هغوی کې نه وي نو د ځان لپاره دې په جهنم کې ځای تیار کړي.

بغدادي په هغه وخت کې چې د نړۍ اسلامیان د روسي اشغالګرانو په وړاندې په مقدس جهاد بوخت ؤ، د بغداد په بعثي مدارسو کې په تعلیم بوخت ؤ . آیا د عالمي جهاد امام هغه څوک کیدلی شی چې په کاذب ډول یې ځان قریشي او حسیني جوړ کړی وي او د جهاد په نړیوالو سنګرونو کې د هیڅ سنګر ګرد او غبار نه وي وهلی؟ بلکې په ډرامتیک ډول دې په ۲۰۱۰ کال کې راڅرګند شي او جعلي شخصیت دې ورکړل شي؟ ایا د نړیوال جهاد امام هغه څوک کیدلی شي چې هیڅ جهادي او ایثاري سابقه ونه لري؟

**(۲) حجي بکر:** نوموړی له بغدادي وروسته په اسلامي دولت کې دوهم کس شمیرل کیده چې خپل نوم یې «سمیرعبد محمد نايل الخليفاوي نايل سمير» دی، نوموړی په عراقي بعثي پوځ کې لومړی په هوایي ځواک کې جنرال او وروسته بیا په استخباراتي اداره کې لوړپوړی افسر پاتې شوی او د بعث ګوند یو له سرکرده کسانو څخه ؤ. هغه یو کیمیایي پوه او له پوځي خبرو څخه برخورداره افسر ؤ. په اسلامي دولت کې حجي بکر د تصمیم نیونې په برخه کې د بغدادي ښې لاس بلل کیده او بغدادي ته د خلافت په عطاء کولو کې د ده لوی لاس ؤ. نوموړی لومړی د نظامي کمیسیون «المجلس العسكري » عمومي مسئول او وروسته بیا په ۲۰۱۲م کې د التصنيع العسكري وزارت وزیر وټاکل شو.





حجي بکر د داعش د ټولو فکري انحرافاتو او د مسلمانانو د وژنو سرچینه بلل کیږي ځکه بغدادي د خلافت په ټولو امورو کې حجي بکر لومړی مشاور باله. حجي بکر د ابو عمر البغدادي له وژل کیدو وروسته په دې بریالی شو چې د دولت له مجلس الشوری ځخه چې له ۹ تر ۱۱ غړي لري ټول غیرعراقي کسان اوباسي او دا شوری صرف له عراقیانو تشکیل کړي تر څو د هغو پټو تؤطیو د بربنډیدا مخه ونیول شي چې همدا بعثي مجرمین یې د اسلامي امت په اړه لري. حجي بکر په سوریه کې د لواء التوحید د مجاهدینو له لوري په خپل کور کې اوژل شو او له کوره یې سوریایي پاسپورټ او په هغه پاسپورټ د ایران لریدلي ویزا ترلاسه شول.

**(۳) ابو احمد العلواني**:ولید جاسم العلواني چې د عراق د پوځ ظابط ؤ په داعش کې د عسکري مجلس (نظامي کمسیون) غړی ؤ.علواني د صدام په پوځ کې دنده ترسره کړي او وروسته د داعش له لیکو سره یو ځای شوی.

**(۴) ابو علي الانباري**: علاء قرداش الترکماني د صدام په بعثي حکومت کې د یوې فرقې مسئول ؤ، په ابوجاسم العراقي، ابو قرداش الترکماني سره یې شهرت لاره . نوموړی په اسلامي دولت کې شرعي مسئول ؤ او د رِقه ښار د امام نووي په جامع جومات کې د ماسخوتن او ماښام په مینځ کې لیکچر ورکاوه .

**(۵) ابومسلم الترکماني**: فاضل عبدالله احمد الحیالي چې د صدام په جمهوري ګارډ کې یې د ضابط په توګه دنده ترسره کوله له ۲۰۰۳م کال وروسته نوموړي سلفي فکر خپل کړ چې وروسته د تنظیم سره یو ځای شو او د ټولو پوځي چارو مشري یې په غاړه واخیسته.

**(۶) ابوعبد الرحمن البیلاوي**: عدنان اسماعیل نجم چې په ابوعبدالرحمن البیلاوي شهرت لري په داعش تنظیم کې د مجلس الشوری رئیس او د نظامي کمیسیون عضوه ؤ. نوموړی وروسته د خالدیه په سیمه کې اوژل شو.



**(۷) ابو مهند السویداوي:** عدنان لطیف حامد السویداوي د بغدادي له نصبیدو لږ وروسته له زندانه راخوشې شو. نوموړی د صلیبي تحالف لخوا په دې تور ونیول شو چې د عزت ابراهیم الدوري سره نږدې اړیکي لري. سویداوي هم د صدام په بعثي کمیونیستي پوځ کې د جنرالۍ تر رتبې رسیدلی ؤ چې له راخلاصیدو وروسته یې په داعشي تنظیم کې د حجي بکر سره د یو لږ شخصي ستونزو له امله د ده په دنده انتقاد وکړ چې له امله یې حجي بکر د یو څه مودې لپاره له دندې ګوښه شو. ابومهند د رمانة په ښار کې په یوه امریکایي هوایي برید کې اوژل شو .

**(۸) عاصي العُبیدي :** عاصي د صدام په جمهوري ګارډ کې د یوې لواء مشر ؤ. د ابوغریب په زندان کې بندي شو له راخوشې کیدو وروسته له داعش سره یو ځای شو نوموړی د مجلس الشوری عضوء دی.

**(۹) ابوعمر قرداش:** قرداش ترکماني الاصل ده او د عراق په کمونستي پوځ کې دنده ترسره کړې ده.

(۱۰) ابو اسامة العراقي: عراقي د عراق د تکریت اوسیدونکی دی، د صدام په پوځ کې د لواء رتبې ته رسیدلی ؤ. نوموړی اوس د حسکه والي دی.

**(۱۱) ابوأیمن العراقي:** نوموړی په سوریه کې د داعش تر ټولو لوی مجرم دی. نوموړي په خپل لاس په سلګونه مجاهدین وژلي دي، د صدام په پوځ کې ضابط ؤ.

**(۱۲) ابولقمان :** علي موسی الشواخ هم د صدام په پوځ کې جنرال ؤ چې د بشارالاسد د ځواکونو سره په جګړه کې ونیول شو او وروسته د بشار الاسد په فرمان خوشې شو.

**(۱۳) ابوعمر الشیشاني:** طرخان تیمورازوفیتش باتیرشفیلي له اصله چیچنیایي ده چې د ګورجستان په استخباراتو کې د ضابط په دنده پاتې شوی، نوموړي د داعش د ټولو نظامي عملیاتو مشري په غاړه لرله چې څه موده وړاندې په یوه امریکایي



برید کې اوژل شو.

# څلورم فصل

## د بغدادي خلافت او د نظر خاوندان

د خلافت د شرعي حیثیت په اړه موږ د هغه علماؤ او د جهاد امامانو نظرونه راخلو چې د اسلامي امت صالحه طبقه د هغوی د ربانیت ګواهي ورکوي، هغه علماء چې د نړۍ په هر ګوټ کې د ضعیفانو مظلومینو د حمایت لپاره یې د امت په بیدارۍ کې رول لرلی دی، هغه علماء چې د نړۍ په هر کونج کې د طاغوت په وړاندې جنګیدونکي مبارزین د دوی په فتوی میدان ته وتلي دي، هغه علماء چې د جهاد په دؤو پړاؤونو(د سوسیالیزم او امپریالیزم په وړاندې جهاد) کې په لکونو مسلمانانو خپلې وینې د دوی په فتوی اوبهولې، هغه علماء چې د دیموکراسۍ او جمهوریت په طاغوتي نظامونو کافر دي، هغه علماء چې چې د مصلحتونو او مُترَف ژوند په ځای د زندان، مهاجرت، سنګر ژوند غوره بولي.

موږ د داعش په آړه د هغه علماؤ نظر ته اعتناء نه ورکؤو چې د بلعم بن باعوراء مسیر یې خپل کړی، هغه علماء چې د امت د یوې لویې طبقې د ګمراهۍ سبب شول،هغه علماء چې په دربار یې خپل دین او ایمان وپلورلو، هغه علماء چې د صلیب او طاغوت په وړاندې مقدس جهاد تروریزم بولي،هغه علماء چې د شیطاني مصلحتونو په بنیاد د دیموکراسۍ او جمهوریت په ډنډ کې ترپکې وهي.

### (۱) د.ایمن الظواهري د القاعدې د نړیوال تنظیم مشر

« د القاعدې ډله د اسلامي دولت له ډلې سره هیڅ تنظیمي اړیکې نه لري د دولت په جوړولو کې له القاعدې سره نه مشوره شوي ده او نه ترې اجازت غوښتل شوی او نه د دولت په جوړلو القاعده تنظیم خوښ دی، بلکې دوی له دولت جوړولو څخه منع شوي ؤ بناءا اسلامي دولت د القاعدې څانګه نه ده او نه القاعده د دوی د تصرفاتو مسؤلیت په غاړه لري» (مؤسسة السحاب بیان بشأن علاقة قاعدة الجهاد بتنظیم الدولة).

ډاکټر ظواهري د دې پوښتنې په ځواب کې چې ستاسو له داعش سره په کومو ټکو خلاف دی؟ هغه په ځواب کې داسې اویل: زموږ او د دوی اختلاف منهجي دی زموږ منهج (تګلاره) دا ده چې په اوسني وخت کې باید د زمانې په هبل (بت) امریکا او د دوی په صلیبي ائتلافیانو او د صهیونستانو او د دوی په اجیرو خاینانو تمرکز وشي او له جانبي جنګونو څخه باید ځان وژغورل شي. زموږ منهج دا دی چې باید په وینو کې احتیاط وشي او له هغه عملیاتو څخه ډډه وشي چې پکې د بې ګناه انسانانو وینې تویږي. بالخصوص هغه عملیات چې په بازارونو اومساجدو او د اوسیدو په ځایونو کې بلکې د مجاهدینو په مینځ کې ترسره کیږي.

نوموړی بل ځای داسې وایي:آی مجاهده: ته شام ته د دې لپاره راغلی یې چې د الله کلمه لوړه شي او د کافرانو کلمه ټیټه شي نو خپله لاړ مه ورکوه او پام چې ځینې خودغرضان دې په خپلو لانجو کې ونه کاروي. هغوی چې د واک، ځواک او القابو

اومنصبونو لپاره جګړه د دين په نوم کوي. زه تاته وايم: که زه تاته امر وکړم چې پخپلو مجاهدينو وروڼو تجاوز وکړه او يا ځان د دوی په مينځ کې منفجر کړه نو زما اطاعت مه کوه او زما نافرماني وکړه ځکه زه له تا څخه د الله عذاب نشم ګرځولی.

نوموړی بل ځای د ابوخالد السوري په هکله هغه چې دواعشو شهيد کړ داسې وايي:

ومن السعاة إلى المناصب دونها هتكوا المحارم جهرةً وفجورا
أسلافهم قتلوا الخليفة ثالثًا يتلو الكتاب مسالمًا وصبورا
طعنوا أبا الحسن الإمام مصليًا حجبت شموسًا طعنةٌ وبدورا
سيخيب في أرض الشآم حفيدهم وكفى بربك هاديًا ونصيرا

ژباړه:هغوی چې د لوړو څوکيو لپاره هڅې کوي، په ښکاره او ناروا يې عزتونه څيري کړل. د دوی پلارانو دريم خليفه په داسې حال کې شهيد کړ چې د الله د کتاب لوستونکی ؤ. هغه سوله خوښوله او صبر يې کولو. د حسن پلار(علي) يې په داسې حال کې په نيزه اوهلو چې لمونځ يې کولو د ده د نيزې ګذار سپوږمۍ او د لمر سترګې پټې کړې. د هغه خوارجو لمسی (ابوبکر بغدادي)به د شام په زمکه کې ناکام شي او ستا رب د هدايت او نصرت لپاره بس دی.

## (۲) ابومحمد المقدسي

عاصم طاهر البرقاوي چې په ابومحمد المقدسي مشهور دی، د عربي نړۍ وتلی ديني عالم دی. نوموړی د ابومصعب الزرقاوي استاذ او د سلفي جهادي تَيار روحاني شخصيت دی. هغه د بغدادي دولت او د ده د خلافت په اړه داسې وايي:

په الله قسم چې داسې بد اخلاق مې د غِلو کونکو او غدارانو او درواغجنو او مکارانو(دواعش) سوا بل د چا نه دي ليدلي. هغوی د مسلمانو اخلاق نه پيژني او ايماني ورورولي نه پيژني، په داسې يوه ډله کې ځان محصور بولي چې د حال په ژبه د يهودو د دې خبرې مصداق جوړيږي (ولاتؤمنوا الا لمن تبع دينکم) دوی له خوارجو هم بدتر دي. ځکه خوارج په لويه ګناه خلق کافر بولي دوی خو په نيک عمل خلق کافر بولي وروسته له هغې چې دا نيک عمل دوی يو ځل ګناه، خيانت ته واړوي د دوی په هاند د تکفير ضابطه خواهش او خصومت دی. دوی له روافضو څخه سخت درواغجن دي او له يهودو څخه سخت بهتانګر دي.

نوموړی بل ځای داسې وايي: زه په دؤو خبرو له دوی (داعشيانو) سره مباهله کوم لومړی دا چې موږ دوی ته د ټولو هغو لانجو چې د نورو جهادي ډلو سره يې لري د حل کولو په منظور د هغه قاضيانو د تحاکم غوښتنه وکړه چې د دوی د شروطو موافق ؤ(يعني هغه علماء او قاضيان چې په طاغوت کافر وي ټول وضعي قوانين کفر بولي ) خو دوی له مياشتو ټال مټال وروسته دا تحاکم صراحةً رد کړ دوی د الله شريعت حکم د بل چا په حق کې نافذوي خو د الله حکم پخپل ځان نه تطبيقوي.

دويمه خبره دا چې دوی زموږ د خور ساجدة الريشاوي (هغه فدايۍ ميرمن چې غوښتل يې د واسکټ په توسط په يوه خارجي ميلمستون بريد ترسره کړي او د اردني حکومت لخوا ژوندی ونيول شوه) وينه هدر کړه او د هغې د وينې قدرداني يې ونکړه همدا راز د شهيد ورور زياد الکربولي وينه يې بې قيمته اوبلله. موږ دوی ته خبر وليږلو چې که تاسو معاذ الکساسبة (اردنی

پیلوټ) اوژنی نو اردنی حکومت به دا مجاهده میرمن او دا مجاهد بندي په دار کړي خو دوی موږ ته باربار دوکه راکوله. په داسې حال کې چې دوی اردنی پیلوټ په هماغه لومړیو ورځو کې سوځولی ؤ خو د مسلمانو ځوانانو د تغریر او دوکه کولو په پار دوی د کساسبه په بدل کې د ساجدة الریشاوي نمایشي غوښتنه وکړه خو کله چې موږ پوه شؤو چې کساسبه لا پخوا سوځول شوی دی او داعش د کساسبه له موضوع څخه میډیایي ګټه پورته کوي، بیا مو د داعش قیادت ته ځواب ولیږلو چې لطفاً که غواړی د یوې مجاهدې خور وینه وژغورل شي نو د کساسبه د سوځونې فیلم مه نشروئ ځکه اردنی حکومت به دا مظلومه مجاهده میرمن په دار کړي خو دوی په ډیره بې شرمۍ دا فیلم نشر کړ او همدوی د امت د یوې اتلې میرمنې او اتل بچي د وژلو سبب جوړ شول.

## (۳) ابوقتادة الفلسطيني

عمر محمود عثمان چې په ابو قتادة شهرت لري، په برطانیه کې له اوږده بند وروسته په ۲۰۱۳ م کال د اردن حکومت ته وسپارل شو. نوموړی د اردن، الجزایر،بلجیم، فرانسې،امریکا،اسپانیه، المان، ایټالیا لخوا د وانټید یا مطلوبو کسانو په لیست کې دی. د یادو هیوادونو لخوا په نوموړي بیلابیل تورونه لږول شوي دي. د اردن یوې محکمې نوموړی په ۲۰۱۴م د ډیسمبر په میاشت کې له ټولو تورونو بریئ کړ او له زندانه خوشی شو. نوموړی په اروپا کې د بن لادن سفیر بلل کیده او امریکایي استخباراتو هغه د القاعدې مفتي باله او تور یې پورې کاوه چې د محمد عطاء ډلې په المان کې د ده څخه درسونه ترلاسه کړي ؤ.

د ګمراه بغدادي په فتنه کې نه واقع کیږي مګر جاهلان او رذیلان.

نوموړی د پورتني عنوان لاندې لیکي: په الله قسم چې د بغدادي ګمراه په فتنه کې نه پریوځي مګر جاهلان او رذیلان. موږ د دوی د اخلاقو ډیره څارنه وکړه خو په دوی کې داسې کس نشته چې دین اخلاقو او علم ته وفادار وي بلکې دوی ډیر بداخلاقه دي دوی په خطاب کې غِلوه کوي او ځان له نورو پورته بولي. په الله قسم او بیا په الله قسم چې زه د دوی په هکله هر وخت استخاره کوم خو زما بصیرت لاپسې زیاتیږي چې دا خلق د جهنم د اور سپي دي.

نوموړی بل ځای داسې وایي:عدناني خبیث خپلو پلویانو ته داسې اشارې ورکړي چې په خراسان کې د طالبانو خلاف وجنګیږي. دا مفسده ډله چې کوم ښار ته داخل شي هغه فاسد کړي، طالبانو د ملاعمر په قیادت په اوسني عصر کې داسې ایماني وِقفات ثابت کړل چې ټول خلک ترې عاجز دي بیا دا عدناني مجرم راځي د بغدادي مجرم، درواغجن، ګمراه په مشرۍ خپلو اتباعو ته د طالبانو خلاف د جنګ امر کوي دا د خباثت دولت دی. موږ له دې دولت سره د دې وجې نه دشمني نه لرو چې دوی د الله له دشمنانو سره دشمني لري بلکې موږ د دوی سره ځکه دشمني لرو چې دوی د الله له دوستانو مجاهدینو سره دشمني لري. دوی مجاهدین کافران بولي، هغوی وژني، هغوی ذبح کوي، هغوی کوابې، د مجاهدینو ښځې هغوی وینځې جوړوي چې دا خبره اوس په یقین بدله شوې ده او له دې نه صرف جاهلان ناخبره دي.

### (۳) شيخ سلمان العلوان

سليمان بن ناصر بن عبدالله العلوان مشهور سعودي عالم چې په ۲۰۰۴م کال کې د سعودي حکومت لخوا جهادي ډلو سره د تړاؤ په تور جيل ته ولېږدول شو، له ۹ کاله زندان وروسته خوشې شو خو په ۲۰۱۳ م کال کې د سعودي يوې محکمې د هغه د بيا نيولو امر صادر کړ چې تر اوسه په زندان کې دی. نوموړی د داعش په هکله داسې وايي:

دا «بغدادي» د مسلمانانو خليفه نه دی بلکې د يوې ډلې امير دی. دا چې نوموړی له نورو بيعت غواړي او که بيعت نه ورسره کوي نو وژني يې دا عمل د باغيانو دی د نيکو او مصلحينو کار نه دی.

### (۵) شيخ عبدالله السعد

د سعودي وتلی فقيه او محدث عبدالله بن عبدالرحمن بن محمد آل سعد المطيري داسې وايي:

موږ ټول عامو مجاهدينو ته  له دوی څخه د لرې والي توصيه کؤو او د دوی مشرانو ته وايو چې له الله څخه اوېرېږئ. حق ته واپس شئ. توبه اوباسئ. او هغه جرمونه درک کړئ چې تاسې يې کوی.

### (۶) شيخ عبدالعزيز الطريفي

عبدالعزيز بن مرزوق الطريفي مشهور سعودي عالم او فقيه د دې منحرفې ډلې په اړه داسې وايي:

د بغدادي سره ټول بيعتونه د فتنې او قتال بيعتونه دي او عام بيعت چې له مشهورو جهادي ډلو هغوی چې په ساحه کې واک ځواک لري له مشورې پرته وي، بدعي بيعت دی او اصلاً منعقد نه دی چې موږ يې وروسته د فسخې په اړه څه اوايو.

نوموړی بل ځای داسې وايي : په هغه ذات قسم چې له ده سوا بل خدای نشته زه يوه لحظه هم په دې کې شک نه لرم چې دا (داعش) خوارج دي او څوک چې د دوی په لاس اوژل شي د هغې اجر د الله سره زيات دی د هغې چا څخه چې د اسد د نظام له لورې اوژل شي. د خوارجو هغه دقيق صفت چې ټول دلايل پرې راځرخي، بغير د مکفر څخه د مسلمانانو تکفير دی، دوی د ابن عباس په زمانه کې هم د کفارو سره جنګ کولو او حدود يې قايمول خو له دې سره بيا هم ابن عباس دوی خوارج بلل.

### (۷) شيخ علامة ابوالوليد الغزّيُّ الانصاري

هغه څه چې موږ ترې خبر يو، په عراق او شام کې د دولت اعلان د شام د مجاهدينو اوعلماؤ د اهل حل او عقد په مشوره نه دی شوی بلکې له دې وړاندې په عراق کې د دولت اعلان هم له مشورې پرته شوی ؤ چې په هغه وخت کې هم موږ د دې اعلان له بدو عواقبو څخه خبرداری ورکړی ؤ.

### (۸) شيخ محدث عبدالله صادق السوداني

دا خیالي دولت تر اوسه په ټول عراق واکمن نه دی نو نورو سیمو ته څنګه پراخیدلی شي؟ او دا هغه څه دي چې له عاقلانو پټ نه دي.

## (۹) شیخ ابو الفضل عمر الخدوشي

دا عدناني لحان وايي: (فانک بقتال الدولة الاسلامیة تقع بالکفر من حیث تدري او لاتدري)نو ته د دولت سره په جنګ کولو کافر ګرځې که ته پوهیږې او یا نه. له امام بخاري څخه هیر شوي دي چې په خپل کتاب کې یې باب منعقد کړی وی چې :(باب قتال الدولة الاسلامیة کفرٌ) یا دې داسې باب راوړی وی: (باب قتال الدولة الاسلامیة ناقض من نواقض الاسلام) خو د لوی دجال له راښکاریدو وړاندې به واړه واړه دجالان څرګند شي دا واړه دجالان به لوی دجال ته لار خلاصوي نو عدناني د هغو وړو دجالانو یوه نمونه ده.

## (۱۰) شیخ حسن بن علي الکتاني الحسني

دوی هغه اوژلو الله دې دوی اوژني آی د جرمونو او جنایتونو ډلې: تاسې ډیر لوی کار وکړو آی د ذوالخویصرة لمسیو، یالله ته دوی ونیسي ځکه دوی تا نشي ناتوانه کولی، الله دې په تا رحم وکړي اباخالده، او تاسې ته زه زیری درکوم چې دا به د جنایتکارې ډلې په تابوت اخري میخ وي.

نوموړی بل ځای داسې وایي: ابوبکر بغدادي لومړی کس نه دی چې له عثماني خلافت وروسته د خلافت دعوی کوي، الشریف الحسین بن علي الهاشمي د عربي انقلاب څخه وروسته د خلافت دعوی وکړه خو مسلمانو هغه د خلیفه په توګه ونه مانه .

په خدای قسم چې دا خلافت په تګلاره د نبوة نه دی بلکې خلافت په تګلاره د مروان بن الحکم او ابوالعباس السفاح دی .

## (۱۱) شیخ شهید آدم ګدان

شیخ یحیی آدم ګدان چې امریکایی الاصله دی داسې وایي:

دغه ډلې د بوش هغه عیبجن شعار خپل کړی چې تاسې به یا زموږ سره وی یا له تروریستانو سره. دوی هم وایي چې یا به زموږ خلافت منی یا به وژل کیږی.

هغه علماء، مشایخ، د جهاد امامان چې د بغدادي او حجي بکر خلافت شرعي نه بولي:

شیخ ابوخالد السوري، شیخ قائد ماجد الماجد، استاذ احمد فاروق، ابودجانه الباشا، شیخ حارث بن غازي النظاري، شیخ ابراهیم بن سلیمان الربیش، شیخ ابومحمد الجولاني، شیخ ابوعبدالله الشامي، شیخ عبدالله بن عبدالرحمن الشنقیطي، شیخ عبدالله بن احمد البن الحسیني، شیخ د سامي العریدي، شیخ نصر بن علي الآنسي، شیخ ابومنظر الشنقیطي، شیخ

ابوالحسن رشيد بن محمد، شيخ ابوفراس السوري، شيخ مختار بالمختار،شيخ د هانئ الشباعي، شيخ د طارق عبدالحليم، شيخ عبدالعزيز القطري، شيخ ابو مارية القحطاني ،شيخ عبدالله المحيسيني، شيخ مظهرالويس،شيخ ابوسليمان المهاجر، شيخ ابو معاذ نورالدين نفيعة، شيخ د.اياد قنيبي، لؤي السقا ابوالربيع الشامي، شيخ عثمان الغميراوي، شيخ محمد بن صالح المهاجر، شيخ خالد بن عمرباطرافي ابومقداد الکندي، شيخ المنذر الشامي، شيخ ابوالوفاءالتونسي، ابوسياف ماجد الراشد، قائد صلاح الدين .

## داعش د عراق له اسلامي دولته تر الدولة الاسلامية في العراق والشام بيا تر الخلافة

ابو احمد العراقي چې د زرقاوي له نږدې ملګرو څخه ؤ، خپله قصه داسې بيانوي: په ۲۰۰۰م کال کې افغانستان ته لاړم او هلته د القاعدې له تنظيم سره يو ځای شوم. د سيپټمبر له مبارکو عملياتو وروسته موږ د قندهار په هوايي ډګر کې اوسيدو او زه يو له هغه لسو کسانو څخه وم چې د امريکايي بمبارد څخه ژوندی پاتې شوم، خو سخت ټپونه مې په بدن خوړلي ؤ له همدې امله موږ سيستان بلوچستان ته واړول شو او هلته د علاج لپاره په يوه روغتون کې څه موده پاتې شوؤ. د يوې ډلې سره يو ځای چې موحد المصري هم راسره ؤ د ايران په بلوچستان کی د ايراني حکومت لخوا ونيول شو. د څه مودې بند ورسته ايراني حکومت له موږ څخه د ځان خلاصولو په پار، موږ ته عراقي جعلي پاسپورټونه جوړ کړل او موږ يې په همدې پاسپورټونو ماليزيا ته وليږلو. په ماليزيا کې له ملګرو سره تر يو ځای کيدو وروسته موږ بيا ايراني جعلي پاسپورټونه جوړ کړل او بيرته ايران ته راغلو، له ايرانه مو د عراقي کردستان په لورې مخه کړه او هلته د ابومصعب الزرقاوي سره يو ځای شوم موږ د انصارالسنة ډلې ميلمانه ؤ. کله چې په عراق امريکايانو يرغل وکړ، موږ له ابومصعب سره يو ځای عراق ته د امريکايانو د مقابلې لپاره ننوتو. زرقاوي له شيخ اسامه سره بيعت وکړ چې په دې سره هلته ټول مجاهدين سره متحد شول او له نورو هيوادونو څخه هم د القاعدې غړي عراق ته راورسيدل.

زرقاوي اوژل شو او د هغه جاسوس هم اعدام کړل شو چې وروسته ابوحمزة المهاجر د تنظيم مشر شو خو عجيبه دا وه چې په نابېره توګه مهاجر ابو عمر البغدادي راوړاندې کړ او هغه يې امير مقرر کړ. بغدادي په تنظيم کې يو عادي فرد ؤ چې د مهاجر دغه عمل ته ټول خلک حيران شول او تنظيم نوم دولة العراق الاسلامية ته واړول شو. دولت ته پخوانيو بعثيانو مخه کړه. د کتايب ثورة العشرين ډلې غړي او د عزت ابراهيم الدوري ډله او د ابوعلي الخليلي ډله ټول په دولت کې ننوتل. د دوی په راتګ سره د جهاد مسير واړول شو په عامه ځايونو کې چاودنې، له ګڼې ګوڼې په ډک بازار کې انفجارات د همدې بعثي مجرمينو کار ؤ ځکه اوس دوی ته په دې خاطر چې دوی جنګي سابقه لري ټولې نظامې چارې ورسپارل شوي وی. هغوی ؤ چې په عراق کې يې فرقييزې جګړې ته لمن ووهله او په دې جګړه يې تيل اوپاشل.

موږ پوهيدو چې د جهاد مسير په بدليدو دی خو زموږ شکايت نه اوريدل کيدو چې له همدې امله د دولت لوی قاضي سليمان العتيبي په خراسان کې قيادت ته خط وليږلو چې د عراقي جهاد وخيم حالت پکې انځور شوی ؤ. خو چې کله عتيبي پوه شو چې نصيحت يې بې اثره دی نو خراسان ته لاړ چې بالاخره هملته شهيد هم شو.

بغدادي او مهاجر په يوه معمايي برید کې اوژل شول او ابوبکر بغدادي بیا په ډیر ندرت او د مهاجرینو له مشورې پرته امیر وټاکل شو. دا هغه مهال ؤچې په سوریه کې د بشار پر ضد مظاهرې پیل شوې چې بالاخره دا مظاهرې په انقلاب واوښتې او په سوریه کې د بشار خلاف منظم جهاد پیل شو. موږ ته د ظواهري له لورې امر راغلو چې يوه ډله مجاهدين سورېې ته د سوریایي ولس د مرستې لپاره ولیږو. د ابو محمد الجولاني په مشرى د جبهةالنصرة ډله سورېې ته ولیږل شوه.

ابوبکر البغدادي اصلا د هغه بعثي جنرالانو لخوا راوړاندې کړل شو چې تازه له دولت سره یوځای شوي ؤ او غوښتل یې د دولت واګې په لاس کې واخلې چې په همدې مرام کې دوی کامیاب شول. بغدادي د امریکایانو له راتګ سره سم سورېې ته وتښتیدو او هلته د دمشق سره نږدې د سیدة زینب په ښارګوټي کې یې واړول. تر ۲۰۰۶م کال پورې نوموړی په دمشق کې میشت ؤ. نوموړي له زرقاوي سره نه دي لیدلي او نه یې له هغه سره تعارف لاره خو د زرقاوي له شهادت ورسته بغدادي عراق ته راستون شو او د ابوعمر البغدادي په وخت کې نوموړی د یوه بَرِید (پوستې آفس )مسئول ؤ.

بغدادي په سوریه کې د اوسیدو پر مهال د سوریایي نظام د استخباراتي ارکان د دؤو مهمو کسانو معاذ الصفوک او ابوالقعقاع الثاني سره نږدې اړیکې پیدا کړې چې همدا اړیکې په داعش کې د سوریایي نظام د نفوذ پیل ؤ.له بله پلوه د انصارالتوحید په نوم ډلې مشر د بغدادي باجه (دښځې د خور خاوند) ؤ. نوموړي چې له زرقاوي او مهاجر سره نږدې تعلق لاره د ابوعمر البغدادي سره د ابوبکر البغدادي رابط شو. ابوبکر البغدادي په ۲۰۰۶م کال عراق ته واپس شو او د امریکایانو لخوا ونیول شو او له راخلاصیدو وروسته یې بیا له دولت سره کار پیل کړ.




## دابو احمد العراقي ګواهي

ابوعمر البغدادي او ابوحمزه المهاجر د تکریت په لویدیځ کې د مناف الراوي په کور کې اوسیدل. مناف الراوي چې د بغداد والي ؤ په ۲۰۱۰م کال کې په بغداد کې داسې مهال د عراقي ځواکونو لخوا ونیول شو

چې له يوې امنيتي پوستې تيریده د هغه د نیولو سره هم مهاله د ابوبکر بغدادي کور ته یو عراقي امنيتي چاروا‌کی ولیږل شو تر څو د اسلامي دولت قیادت آګاه کړل شي چې خپل ځای بدل کړي خو کله چې د امنيتي چاروا‌کی د بغدادي کور ته ورسیدو بغدادي یا د بی پروایۍ له امله او یا په لوی لاس دا خبرداری نادیده وګاڼه چې په نتیجه کې یې د مناف الراوي له نیول کیدو یوه

هفته وروسته عراقي ځواکونو د مناف الراوي په کور چاپه اوهله چې ابوعمر او ابوحمزه دواړه په برید کې اوژل شول او د تؤطیې له مخې میدان هغه بعثي جنرالانو ته خالي ورپاتي شو چې د موقع انتظار یې کولو.

په سوریه کې د القاعدې رسمي څانګې جبهة‌النصرة یو مشر ابو ماریة القحطاني په خپل یوه نوي بیان کې له دواعشو کې شمیر پوښتنې دتحدی یا چیلنج په دود کړي چې تر اوسه یې د مقابل لورې هیڅ ځواب نه دی ترلاسه شوی. یوه پوښتنه داده: ابوبکر بغدادي په کومه طریقه وټاکل شو؟ آیا هغه د بعثي جنرال حجي بکر لخوا نه دی ټاکل شوی؟ په هغه وخت کې چې له بغداده یو امنیتي چارواکی د بغدادي کور ته په دې خاطر ولیږل شو تر څو بغدادي خبر کړي چې د اسلامي دولت هغه قیادت چې د مناف الراوي په کور کې اوسیږي حکومت پرې خبر دی او هغوی باید ځانونه وژغوري خو ستاسو خلیفه ولې ابو عمر البغدادي او مهاجر له دې خطر څخه خبر نه کړل؟ آیا ستاسو خلیفه د دوی په قتل کې مستقیما شریک نه دی؟

مناف الراوي په ۲۰۱۳م کال د اپریل په لومړی نیټه د عراقي دولت لخوا اعدام کړل شو. د مناف الراوي له نیونې سره اسلامي دولت له ډیرو ستونزو سره مخ شو او په عراق کې مهاجرین مجاهدین یا ونیول شول یا شهیدان کړل شول چې په دې سره د داعش په لیکو کې حجي بکر او نور پخواني کمیونستان تقویه شول او د پریکړو واک د دوی لاس ته ولویدو.

دا مهال چې ابوبکر امیر ټاکل شوی ؤ، حجي بکر بیا د ټولو نظامي عملیاتو مسئولیت په غاړه لاره، ابو مهند السویداوي د عراق د پخواني پوځ بل جنرال چې کله د عراق له حکومت له زندان څخه راخلاص شو د حجي بکر په ځای وټاکل شو. د دواړو بعثي جنرالانو په دوره کې عراق د سختو فرقیي پیښو شاهد ؤ او همدا بعثي جنرالان ؤ چې په عامه ځایونو کې یې حملې تنظیمولې، خو لږه موده وروسته ابو مسلم الترکماني چې همدا څه موده وړاندې په یوه برید کې اوژل شو؛ له زندانه راخوشی شو او د بغدادي ځای ناستی او د ټولو نظامي عملیاتو مسئول وټاکل شو.

ابومسلم الترکماني د تل عفر د ترکمان قبیلې دی. هغه قبیله چې د القاعدې ډیر مجاهدین د دوی په غدر وژل شوي چې یو له هغوی څخه ابو سیف ا لعبیدي الموصلي دی چې د زرقاوي په وخت کې امنیتي مسئول ؤ. نوموړی د عبدالرحیم الترکماني له لورې اوژل شو چې همدا الترکماني اوس د عبدالناصر په نوم د دیرالزور والي دی. د داعش په سوریایي تشکیل کې یواځې ابوایمن العراقي دی چې عبدالرحیم الترکماني په خپل نوم پیژني خو ابو ایمن په خپله هم د صدام د استخباراتو ضابط ؤ. نوموړی په دې مقوله مشهور دی چې ویلي یې ؤ: موږ د الله د شریعت حاکمیت نه غواړو بلکې موږ د ځنګل شریعت غواړو.

## پنځم فصل:

# د داعش او نورو جهادي ډلو ترمینځ کشمکش

دقيقاً په ۱۹/۴/۲۰۱۴م د دوشنبې په ورځ اسلامي دولت رسما خپل مشر ابوبکر البغدادي د خليفه په توګه اعلان کړ. له بله پلوه د عرب پسرلي په تعاقب په سوريه کې د بشارالاسد په ضد لاريونونه پيل شول. اسد له دې ويرې چې د قذافي، زين العابدين او حسنی مبارک په انجام اخته نشي له لومړي سره يې د لاريون کؤونکو په ځپلو پيل وکړ تر دې چې لاريونونه په وسلوال پاڅونونو واؤښتل او لاريون کؤونکو وسلې لاس ته کړې.

ايمن الظواهري د القاعدې ډلې مشر د اسلامي دلت مشرتابه ته امر وليږلو چې شام ته د سوريايي ولس د ملاتړ په منظور يوه ډله مجاهدين وليږي چې د ابو محمد الجولاني په مشرى د سوريايي مجاهدينو يوه ډله هلته وليږل شوه او په کمه موده کې يې خورا مهمې سيمې د اسد له رژيم څخه پاکې کړې او همدا ډله د سوريې د ولس سره د نصرت او همکارئ لپاره ليږل شوي وه چې په ۲۰۱۲م د جنوري په مياشت کې د جبهة النصرة په نوم رسماً اعلان شوه.

ابو محمد الجولاني او جبهة النصرة په ډيره کمه موده کې نړيوال نومونه وګرځيدل او د نړئ له لراوبر څخه يې د خلکو نظرونه ځان ته واړول. له بله پلوه د سوريايي ولس له لورې د جبهة النصرة د مساعدوي رول په وجه تود هرکلی وشو چې دې چارې د اسلامي دولت بعثي جنرالان ډير وارخطا کړل ځکه له يوې خوا د خليجي او نورو اسلامي هيوادونو څخه مالي منابع د اسلامي دولت څخه د جبهة النصرة په لوري مات شول له بله پلوه عراقي ديکتاتورو جنرالانو له جولاني څخه ويره لرله چې له دولت څخه بغاوت ونه کړي چې په دی لړ کې حجي بکر ډير رول اداء کاوه.

د اسلامي دولت له لورې هيڅ عراقي ته اجازه نه ورکول کيده چې په جبهة النصرة کې کار وکړي او ټولو د دولت غړو ته اعلام شوي وه که څوک سورېې ته د جهاد لپاره لاړ شي هغه به له اسلامي دولت څخه منشق (وتلی) اعلان شي . د نړئ له لراوبره د جبهة النصرة په لورې د جهاديانو راماتيدل بعثي جنرالان ولړزول او حجي بکر بغدادي ته مشوره ورکړه چې له جولاني څخه غوښتنه وکړي چې په يوه صوتي پيغام کې جبهة النصرة د اسلامي دولت يوه فرعه اعلان کړي خو جولاني يې په ځواب د ملګرو سره د مشورې په منظور د وخت غوښتنه وکړه. خو له دوه مياشتو تيريدو سره بيا هم د جولاني لخوا جواب معلوم نه شو چې د بغدادي لخوا بيا غوښتنه وشوه. بالاخره جولاني په ځوابي ليک کې وليکل: د جبهة النصرة د شورى غړو فيصله وکړه چې په اسلامي دولت پورې د دې ډلې تړل د سوريايي پاڅون په ګټه نه دی.

جولاني چې دا مهال په سوريه کې د امريکا لخوا لومړی مطلوب کس اعلان شو؛ د بغدادي لخوا ورته بيا امر وليږل شو چې د اسد پوځ سره يو ځای د ازادی سورېې پوځ (الجيش الحر) هم د خپلو بريدونو هدف وګرځوي چې د جبهة النصرة لخوا شرعي دليل وغوښتل شو چې په دې سره بغدادي نور هم غوصه شو او جولاني ته يې د دوو خبرو کې اختيار ورکړ چې يا به جبهة منحلوي او يا به د ده ټول اوامر مني خو جولاني بيا له ځنډ وروسته د بغدادي دواړه خبرې رد کړې چې په دې سره بغدادي يو هيئت وليږلو خو جولاني د هيئت سره له ليدنی انکار وکړ او ورپسې اقدام کې بغدادي يو لوړپوړی هيئت سورېې ته د دې لپاره وليږلو ترڅو هلته د جبهې نور غړي د جولاني څخه بغاوت ته وهڅوي او سورېې ته د اسلامي دولت د غځيدو لاره هواره کړي چې نوموړي هيئت له ليدنو کتنو وروسته د جبهة النصرة ځيني غړي له دې ډلې څخه جدا شول چې ابو ريتاج التونسي،

ابوعمر العبادي التونسي، ابو ضمضم الحسني المغربي، ابو الحجاج النواري المغربي، ابوبکرالقحطاني د جبهة النصرة له لورې د تکفيري فکر د اشاعت په تور ونيول چې وروسته ابوبکر القحطاني په اسلامي دولت کې شرعي وټاکل شو.

د اسلامي دولت په مجلس الشورى کې چې غړي يې ټول د پخواني کميونستي پوځ جنرالان دي فيصله وشوه چې بغدادي بايد پخپله سوريې ته سفر وکړي او کوشش وکړي چې جولاني منزوي کړي او ملګري يې له دولت سره يو ځای کړي. بغدادي غوښتل چې له جولاني سره اويني خو هغه له دې ليدنې انکار وکړ چې بالاخره بغدادي خلافت اعلان کړ او جبهة النصرة يې منحل اعلان کړه. حجي بکر سوريې ته وليږل شو تر څو هلته د هغه ډلو په خلاف وجنګيږي چې د داعش سره له بيعت انکار کوي او د جهادي ډلو خلاف يې څو ځايه جنګونه رهبري کړل چې په پای کې همدا بعثي جنرال هم د لواء التوحيد د مجاهدينو لخوا اوژل شو .

اسلامي دولت په لومړي سر کې د اسد د وسلوالو مخالفينو په مينځ کې يواځې الجيش الحر په دې کافر باله چې په ديموکراسی باور لري خو بعثي جنرالان په دې فکر کې شول چې څنګه هغه خارجي جنګيالي چې د دوی په ليکو کې جنګيږي په دې قانع کړي چې په سوريه کې د بشارالاسد په وړاندې د جنګيدونکو مجاهدينو په وړاندې وجنګيږي؟ دوی لومړی په مزخرفو دلايلو سره دا مجاهدين کافر وبلل وروسته يې د دوی په وړاندې پراخ بريدونه پيل کړل.

د دواړو طرفونو تر مينځ په دې موافقه وشوه چې د عراق او شام موضوع دې ظواهري ته وليږل شي هغه چې هر څه فيصله وکړه دواړو لوريو ته به د منلو وړ وي خو له لږ ځنډ وروسته ظواهري اسلامي دولت ته امر وکړ چې په عراق دې تمرکز وکړي او سوريه دې جبهة النصرة ته پريږدي خو دا امر بغدادي او د هغه د شورى جنرالانو په دې دليل ونه مانه چې اسلام پولې او حدود نه مني اوظواهري يې په دې تورن کړ چې ګواکې سايکس بيکو (هغه تړون چې پر مټ يې د برطانوي او فرانسوي جنرالانو لخوا ټول منځنی ختيځ اويشل شو او پولې، سرحدونه رامينځ ته شول) ته ژمن دی. کله چې په سيمه کې د اسلامي دولت له لورې تيريو او بريدونو زور واخيست، ظواهري د دواړو لوريو تر مينځ د توسط لپاره د يمن او سعودي مشهورې جهادي څيرې هر يو شيخ عبدالله المحيسيني، ابوخالد السوري، ابوسليمان المهاجر، ته بلنه ورکړه خو نوموړو کسانو له ډيرو هڅو سره بيا هم بغدادي له دوی سره له ليدنې ډډه وکړه او دا کوشش هم ناکام شو.

دا چې بغدادي او ډله يې اوس له دې انکار کوي چې ګنې دوی له ظواهري سره بيعت کړی ؤ يا يې هغه حَکَم جوړ کړی ؤ د دوی د تغرير او دوکې څخه ده. عمر القحطاني چې د دولت عمومي شرعي ؤ، په يوه ويډيويي کليپ کې وايې: ابوبکر بغدادي ويلي دي: په الله قسم چا چې له اسلامي دولت سره بيعت کړی د ظواهري په امر يې کړی او که د هغه خوښه نه وي دا بيعت منحل دی خو ورسته ايمن ظواهري په شام او عراق کې اسلامي دولت لغوه اعلانوي او تر عراقه يې محدودوي.

## داعش په تيراه کې

د اسلامي دولت ویاند ابومحمد العدناني په یوه غږیز پیغام کې ټول تنظیمونه او امارتونه، جهات منحل اوبلل او د اسلامي دولت له مشر ابوبکر البغدادي سره یې په ټولو مسلمانانو بیعت فرض اوباله. دا چې عدناني څوک دی ؟ او خبرې یې څومره له دجل، مکر، دوکې، درواغو ډکې دي؟ په دې به وروسته خبرې وکړو خو د ده دا اعلان بی اثره پاتې نه شو او په افغانستان او پاکستان کې یې هم غبرګونونه ولرل چې په لومړي غبرګون کې ورسره په ننګرهار ولایت کې د عبدالرحیم مسلم دوست په نوم یو کس بیعت وکړ او د بغدادي بیعت ته یې د مجاهدینو په مینځ کې تحرکات پیل کړل، لږه موده وروسته په سیمه کې د امارت له صفه هغه شړل شوي مجرمین چې دوسیې یې اوس هم په مربوطه مراجعو کې پرتې دي له دې کاروان سره یو ځای شول.

د تیراه ایجنسۍ په غرنی سیمه کې حافظ سعید خان چې پخوا د تحریک طالبان سره ؤ د بغدادي سره بیعت اعلان کړ او د بغدادي لخوا نوموړی د خراسان والي او عبدالرؤف خادم (ابوطلحه)د ګوانتامو پخوانی بندي یې نایب وټاکل شو. په جلال اباد کې پخواني حزبیان هم له دې کاروان سره په دې نیت یو ځای شول چې د حزب اسلامي مجاهدین خو دا ۴۰ کاله د خلافت غم اخیستي او په دې لاره کې یې د ډیرو مسلمانانو وینې هم توی کړي نو چې خلافت یې کور ته راغی نو څنګه به ورسره نه یوځای کیږي؟

حافظ سعید د استخباراتي کړیو په امر له تیراه څخه راکوز شو او په دې هدف چې جنګ د افغانستان خاورې ته ولیږدول شي د جلال اباد په جنوبي ولسوالیو کې یې کورونه، مرکزونه جوړ کړل. نفوذ یې ورو ورو پراخیده چې بالاخره یې له سیمې د امارت ټول مجاهدین راوشړل او دهغه خلکو په وژلو یې پیل وکړ چې له امارت سره یې همکاري لرله. امارت په لومړي سر کې د دوی سره مخامخ کیدل نه غوښتل خو وروسته یې د پریکنده بریدونو فیصله وکړه چې په څو ورځو کې یې له هغه ټولو ولسوالیو دوی وشړل چې نیولې یې وې. دا چې دوی په جلال اباد کې څه وکړل او څه کوي په آړه یې څه ویلو ته ضرورت نشته خو چې کله امارت د خلافت رهبرۍ ته خط ولیږه نو عدناني د بوش په لهجه په ډیره ګستاخانه انداز امارت ته ځواب ورکړ .

همدا اوس عبدالرحیم مسلم دوست رسنیو ته له هغه څه پرده پورته کړه چې دوی د جلال اباد پتمن ولس سره ترسره کړي. هغه څه چې مسلم دوست پرې اوس اعتراف کوي مونږ پخوا خبرداری ورکړی ؤ، خو دلته بیا هم مسئولیت د بغداد بعثي جنرالانو ته راجع کیږي هغوی غواړي دلته او هلته د اصیلو جهادي خوځښتونو په وړاندې غله او مجرمین راپورته کړي او حقیقي جهاد وننګوي.

د تیراه داعشي مثلث چې د تیراه له هغو چرسیانو چې حتی خپل فرض لمونځونه یې نه دی زده او د پولې له دې غاړې حزبي باندې چې په تیرو ۱۴ کلونو کې یې د قدرت او پیسې لپاره له هیڅ وقاحت څخه سر ونه غړاوه او هغه مجرمین چې د اسلامي امارت په محاکمو کې یې د وژنو، غلاؤو، تښتونو دوسیې پرتې دي جوړ دی؛ د خلافت په دې دومره موده کې یې د پاکستان په خاوره کې هیڅ د پام وړ برید ترسره نه کړ. دا په داسې حال کې ده چې د پولې بلې غاړې ته بیا په سلګونو خلک د دوی له لوري په رڼا ورځ

له کلي کوره تښتول شوي او لا يې هم درک نه دی معلوم، جرم يې دا دی چې د اشغال او صليب په وړاندې جنګيدونکي مبارز ته يې يا شپه ورکړې يا يې ډوډی ورکړې.

هغه زميني حقايق چې يواځې ړوند ترې سترګې پټولی شي دا دي چې د تيراه داعشي لوبه د هغه چا لخوا پيل شوی چې دا ۳۶ کاله يې د دې ولس سره په غدر، دوکه، دوه مخی تير کړل او دا ولس د دوی په غدر تر اوسه په اور کې سوځي . آيا هغه څوک بايد په بمونو والوزول شي چې ۵۶ کاله يې د لاړډميکالي عبادت کړی او که هغه څوک چې ويښتان يې په توحيد او جهاد کې سپين شوي؟

د خلافت زمريان دې د ننګرهار ميړنی ولس پريږدي د هيرا منډيې غم دې اوخوري .

د خلافت زمريان دې د ننګرهار ميړنی ولس پريږدي د آی ايس آی سره دې د خپلو هغه ملګرو حساب تصفيه کړي چې د نوښار په سيند کې ماهيانو اوخوړل.

د خلافت زمريان دې د ننګرهار ميړنی ولس پريږدي د آی ايس آی سره دې د خپلو هغه ملګرو حساب تصفيه کړي چې آی ايس آی له زرګونه فوټه بُلندی څخه زمکې ته راخطا کړل او د مرغانو خوراک شول.

د خلافت زمريان دې د ننګرهار ميړنی ولس پريږدي، د حفصه جامعې د هغه پتمنو پيغلو غم دې اوخوري چې تر اوسه يې د مرګ او ژوند درک نه دی معلوم.

د تيراه سيمه پريښودل او د ننګرهار مفتوحه سيمې لاندې کول او د عام ولس خلاف د تيراه شريعت نافذول څه معنی؟

مسلم دوست چې رسنيو ته له څه پرده کړې د هغه څه ۱۰۰ برخه هم نه ده چې هلته له مظلوم ولس سره ترسره شوي دي، هلته حتی د تيراه بدماشان له خلکو غواړي چې د خپلو پتمنو پيغلو د واده واک هم دوی ته ورکړي.

له هغه ځايه چې د وحشت، نشه يي توکو،پوډرو، افيمو، وژنو، تښتونو، غلاؤو، لوټماريو، زانګو ده هغه ځای ته چې د علم، معرفت، وقار، شهامت، زانګو ده څنګه اسلام راتلی شي؟

هوکي په دوی کې ځينې داسې خلک ؤ او شته چې د خلافت په جالبو شعارونو غوليدلي، هغوی په رښتيا په زړه کې د خلافت غم لري خو دا ډله ځوانان علم نه لري او نبوي ﷺ سيرت يې نه دی مطالعه کړی چې هغه صلی الله عليه وسلم په مدينه منوره کې د خلافت تهداب څنګه ايښی ؤ؟

موږ د تيراه او جلال اباد په دواعشو ځکه تبصره کول نه غواړو چې په دې لږه موده کې ولس د دوی کړنې د سر په سترګو وليدې او هغوی يې په خپله په آړه قضاوت کولی شي. موږ بايد د دوی د مرکز او منبعې فکر وڅيړو او وګورو چې آيا دا فکر او عمل له اسلام سره آړخ لګوي او کنه؟

هغه خلافت چې په نبوي منهج وي او د سيرت په کتابونو کې يې ډانچه ښودل شوي، صرف د کتابونو تر پاڼو محدود نه دی بلکې په تيرو ۱۴ سوه کالو کې يې موږ عملي نمونې هم ليدلي او د مثال په ډول يې وړاندې کولی شو. دواعش فکر کوي چې د خلافت ډانچه امت نه ده ليدلې نو هغوی چې د بعثي خلافت کومه نقشه وړاندې کوي اسلامي امت به يې اومني ځکه خلافت د دوی په هاند پخوا تخيل ؤ اوس دوی وجود ته راؤړ.

په تيراه کې د خلافت دعوه داران د اسلامي امارت په وړاندې د يوه سازش په توګه کارول کيږي هغوی ته د استخباراتي کړيو له لورې د مرستې په نوم پيسې راځي چې مسلم دوست پرې اعتراف کوي.

# شپږم فصل

## د اوسنيو او پخوانيو خوارجو ۱۶ مشترک صفات

موږ د سيرت او تاريخ له کتابونو د پخوانيو خوارجو صفات رانقل کؤو، ستاسې مخې ته يې ږدو، قضاوت تاسې ته پريږدو چې څومره په اوسنيو خوارجو(دواعشو) تطبيقيږي.

(۱) مشابهت اوله وجه تکفير: مسلمانانو ته د کفر نسبت کول د پخوانيو خوارجو خاص خصلت ؤ، نافع بن الأزرق د خوارجو د أزارقه د ډلې مشر ؤ. علامه مبرد او د تاريخ نورو علماؤ د ده هغه فتوی راخيستې چې د بنو هاشمو د يو غلام په سوال کې يې ورکړې وه : فشهد نافع أنهم جميعا في النار، ورأى قتلهم: وقال: الدار دار كفر إلا من أظهر إيمانه، ولا يحل

أكل ذبائحهم، ولا تناكحهم، ولا توارثهم: ومتى جاء منهم جاءٍ فعلينا أن نمتحنه: وهم ككفار العرب لا نقبل منهم إلا الإسلام أو السيف.

ژباړه: نو نافع د دوی په آړه ګواهي ورکړه چې دوی ټول به جهنم ته ځي، د دوی وژل لازم دي، هغه اويل: دا ( د دوی د مخالفينو وطن) د کفر خاوره ده مګر څوک چې ايمان څرګند کړي، د دوی(مخالفين يې مقصد دی) ذبيحه رواء نه ده. د دوی سره نکاح رواء نه ده. له دوی ميراث نه وړل کيږي. که له دوی څخه موږ ته کوم کس راغلو موږ به يې امتحان کؤو. دوی د عربو د کافرانو په څير دي چې يوازې به ترې اسلام قبلولی شي کنه وژل کيږي به يعنې له دوی څخه جزيه نه شي قبلولی.

(الملل والنحل ج١ص١١٩،الزينة لأبي حاتم صـ٢٨۴،الكامل ج٣ص٢٠٧)

غور وکړئ له اوسنيو خوارجو سره يې مقايسه کړئ، د عدناني بيانونه واوړئ عيناً د أزرق کلمات کاروي.

عدناني په ١۴٣۶هـ د رمضان په ۵ په يوه بيان کې چې نوم يې ؤ(ياقومنا أجيبوا داعي الله ) په ١۶ دقيقه کې داسې وايې: فاحذرْ فإنك بقتال الدولة الإسلامية تقع باالكفر من حيث تدري او لاتدري. ته له اسلامي دولت سره په جنګ کولو په کفر کې واقع کيږې (کافر کيږې) که ته پوهيږې او که نه. عجيبه منطق نه دی؟ که اومنو چې دا دولت اسلامي، مشروع دولت دی نو د اسلامي دولت په وړاندې جنګ خو د شريعت په اصطلاح کې بغاوت بلل کيږي نه کفر، په داسې حال کې چې دا دولت موږ اسلامي دولت نه بولو.

(٢) د مشابهت دويمه وجه د مسلمانانو وينې تويول: تاريخ اوګورئ پخواني خوارج هم د مسلمانانو وينو ته سخت تږي ؤ. امام طبري ليکي: إنّ الخوارج لمّا خرجوا من العراق، فعدلوا إلى المداين، فجعلوا يقتلون النساء والولدان، ويبقرون بطون الحبالى، ويفعلون أفعالاً لم يفعلها غيرهم.

ژباړه: خوارج چې کله له عراق راؤوتل، مداين طرف ته متوجه شول نو دوی به ښځې او ماشومان وژل، د اميدوارو ښځو خيټې به يې څيرې کولې، داسې کارونه يې کول چې چا نه ؤ کړي.

(تاريخ الطبري ج٣ص٥٠٠)

اوسني خوارج هم وګورئ: په سوريه کې د خلافت عسکرو د محمد فاتح د کورنی ښځې او ماشومان هم ونه بښل بلکې په چاړو يې ذبح کړل.

(٣) دريم مشابهت د اهل الذمة وينه حلاله بلل: پخوانيو خوارجو هم د ذميانو (هغوی چې د مسلمانانو ذمه يې منلي وي) وينه رواء بلله. د عائشة رضي الله عنها د حديث يوه ټوټه: قالت عائشة ياإبن شداد فقد قتلهم، فقال والله ما بعث إليهم حتى قطعوا السبيل، وسفكوا الدماء، واستحلوا الذمة الخ.......(مسند احمد حديث رقم۶۵۶،الإرواء للألباني حديث رقم ٢۴۵٩)

اوسنیو دواعشو هم په عراق او شام کې د اهل الذمه په حق کې سخت جرایم ترسره کړل او پرته له دې چې دوی یې په وړاندې جنګ کړی وي، دواعشو یې ښځې وینځې وګرځولې.

(۴) علماؤ او د دین امامانو پسې بدرد ویل او د دوی توهینول: په پخوانیو خوارجو کې بل خاصیت د علماؤ اسقاط، د دوی سپکول، توهینول، په دوی پسې سپکې سپورې ویل ؤ. کله چې علي رض ابن عباس رض خوارجو ته ورولیږلو، حرقوص بن زهیر خپلو ملګرو ته اویل: یاحملة القرآن إنّ هذا عبدالله بن عباس من لم یکن یعرفه، فأنا أعرفه، هذا ممن نزل فیه وفي قومه ( بل هم قومٌ خصمون)(الزخرف:58) فردوه إلی صاحبه ولاتواضعوه کتاب الله.

(تاریخ الطبري ج۵ص۷۴، البدایة والنهایة ج۷ص۴۸۳، مسند امام احمد حدیث رقم ۶۵۶)

د عراق خوارج هغه علماء، د جهاد امامان په ډیرو سپکو نومونه یاد کړل چې د دوی خلافت یې شرعي ونه باله او دوی د امت لوی لوی علماء توهین او اسقاط کړل.

(۵) پنځم مشابهت د دوی تر مینځ د علماؤ نه شتون: ابن عباس رض خوارجو ته د مناظرې لپاره ورغلو او ورته یې اویل: جئتکم من أصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیس فیکم أحدٌ منهم و من عند ابن عمِّ رسول الله صلی الله علیه وسلم وعلیه نزل القرآن وهوا أعلم بتأویله(البدایة والنهایة ج۷ص۴۸۵)

د دواعشو په صف کې له عراقه تر لیبیا له الجزایره تر افغانستانه، د دوی تر مینځ هیڅ د فتوی اهل عالم شتون نه لري او دا هغه څه دي چې ټول یې مشاهده کولی شو. منځنی ختیځ چې د علم او فضل زانګو ده هیڅ مستند، لوی عالم د دوی سره نه دی ملګری شوی.

(۶) شپږم مشابهت حداثة السن: په خوارجو کې بل مشترک صفت د دوی کم عمري ده: د الله رسول صلی الله علیه وسلم فرمایي: أحداث الأسنان (بخاري ج۲ حدیث رقم۶۹۳۰)

د اوسنیو خوارجو په صف کې به هم داسې کسان ډیر کم اوینې چې عمرونه یې له ۳۰ ، ۳۵ اوښتي وي.

(۷) اوم مشابهت یې د دوی خپل مینځ کې یو او بل په شکوکو وژل: ابو نجدة خارجي چې د دوی یو لوی مشر ؤ، د دوی له خوا اوژل شو (تاریخ الطبري ج۶ص۱۷۴)

عراقي خوارج هم په دې کار کې له دوی څخه شاته نه دي بلکې موږ مسلسل داسې خبرونه اورو چې دوی په شام او عراق کې خپل په سلګونه غټ غټ قوماندانان وژلي .

(۸) اتم مشابهت د دوی د حاکمیت له خاورې سوا ټوله دنیا کفر بلل: امام ابن تیمیة لیکي: وسموا دارهم دارالهجرة، وجعلوا دارالمسلمین دار کفرٍ وحربٍ( فتاوی ابن تیمیة ۱۳ص۳۵)

عدناني په ۱۴۳۶هـ په رمضان کې پخپل صوتي بیان کې په عنوان د (یاقومنا أجیبوا داعي الله ) ؤ داسې اویل: د اسلامي دولت

له زمکې سوا بله هيڅ داسې ځمکه نشته چې په هغې د الله حکم نافذ وي او هغه دې د مسلمانانو کور اوبللی شي.

(۹) نهم نقض د بيعت: پخوانيو خوارجو به چې له يوه امير سره بيعت وکړ نو هغه به يې مات کړ: لمّا اجتمع الخوارج في بيت زيد الطائي، تدافعوا الامارة حتى رضى بها عبدالله بن وهب فقالوا هاتوها، اما والله لا آخذها رغبةً في الدنيا ولا ادعها فرقاً من الموت فبايعوه(تاريخ الطبري ج۵ص۷۵)

اوسنيو خوارجو هم په خپلو غاړو کې د جهاد د امامانو پراته بيعتونه په ډيرو سستو دلايلو مات کړل.

بغدادي په خپل صوتي بيان کې چې عنوان يې ؤ( باقية في العراق والشام) داسې اويل: موږ ته له يوې خوا د شيخ ظواهري حکم مخامخ ؤ له بلې خوا د الله حکم، نو موږ د الله حکم د ظواهري په حکم وړاندې کړ. خو بغدادي نه ده واضحه کړې چې هغه د ظواهري کوم حکم ؤ چې د الله له حکم سره په ټکر کې ؤ.

(۱۰) د خپل اعتقاد لپاره سست او وهمي دلايل راوړل: ابوالعباس المبرد لوى اسلامي مؤرخ ليکي: أنَّ مرداساً ابابلال (وهو أحد الخوارج) لمّا عقد على اصحابه، وعزم على الخروج، رفع يديه وقال: اللهم إن كان ما نحن فيه حقاً؛ فأرنا آيةٌ، قال: فرجف البيت، وقال آخرون: فارتفع السقف؛ فذكر رجلٌ من الخوارج ذالك لأبي العالية الرياحي يُعجبه من الآية، و يُرغبه في مذهب القوم؛ فقال أبوالعالية: كاد الخسف ينزل بهم، ثم أدركتْهم نظرة الله .

ژباړه: مرداس ابوبلال خارجي چې کله د وتلو اراده وکړه او خپل ملګري يې راټول کړل، لاسونه يې پورته کړل او داسې دعا يې وکړه:

آى خدايه:که زموږ لاره حقه وي نو موږ ته يوه نښانه راوښيه، هغه وايي: چې نو کوټه په خوځيده شوه، ځينې وايې چت له کوټې څخه پورته شو، ابوالعالية الرياحي ته يوه خارجي د دې نښانو يادونه وکړه ترڅو هغه پرې دوکه کړي خو ابوالعالية ورته اويل: نږدې وه چې دوى په زمکه ننوتلي واي خو د الله نظر دوى بچ کړل.(الکامل في التاريخ ج ۵ص۶۴)

عيناً همدا حال د اوسنيو دواعشو دى چې د مسلمانانو په وژنه کې په داسې سستو دلايلو اتکاء کوي او دا د ځان د حقيت دليل بولي.

(۱۱) د جهاد او علم په امامانو باندې طعن ويل: پخوانيو خوارجو به هم په علماء او د دين په امامانو پسې بدرد ويل : ابن کثير ليکي: أنَّ ابنَ مُلجِم والبرك بن عبد الله التميمي وعمرو بن بكرٍ التميمي أيضا - اجتمعوا فتذاكروا قتل عليٍ إخوانهم من أهل النهروان فترحموا عليهم وقالوا: ماذا نصنع بالبقاءِ بعدهم؟ كانوا لا يخافون في اللهِ لومة لائمٍ، فلو شرينا أنفسنا فأتينا أئمة الضلال فقتلناهم فأرحنا منهم البلادَ.........

ابن ملجم او برک بن عبدالله او عمر بن بکر سره راټول شول او ويې ويل: موږ د خپلو ملګرو له شهادت وروسته ژوند څه کؤو؟ زموږ دا شهيدان شوي ملګري د الله په لار کې د چا له ملامتيا نه ويريدل نو که موږ د خپلو ځانونو سودا وکړو او د کمراهئ دغه امامانو ته ( چې هدف يې علي، معاوية، عمرو بن العاص رضى الله عنهم ؤ) ورشو او د مسلمانانو ښارونه د دوى

نه په راحت کې کړو............ (البداية والنهاية ج٧ص٣٦١)

امام ابن تيمية ليکي: واصل ضلالهم، إعتقادهم في أيمة الهدى وجماعة المسلمين أنهم خارجون عن العدل وأنهم ضالون(فتاوی ابن تيمية ج٢٨ ص ٤٩٧)

عدناني په خپل يوه غږيز پيغام کې چې عنوان يې دی (لن يضروکم الا أذى)، ابوقتادة او شيخ مقدسي ته د حمير العلم نسبت کوي .

(١٢) د خپلو مخالفينو ښځې وينځې بلل اګر که هغوی اهل قِبله وي هم: فالبيهسية من الخوارج استحلت القتل والسبي على کل حال. له خوارجو څخه د بيهسيه ډله مرييتوب او وژل په هر حال رواء بولي. ( الملل والنحل ج١ص١٢٦،مقالات الإسلاميين ص١١٦)

علامه زرکلي ليکي: فقد جاء عند اليعقوبي أن نجدة بن عامرالحنفي الحروري قد خرج في ايام ابن الزبير بناحية اليمامة، ثم صار الى الطايف، فوجد ابنة لعمرو بن عثمان بن عفان قد وقعت في السبي فاشتراها من ماله- بمائة الف درهمٍ- وبعث بها الى عبدالملک. نجدة بن عامر الحنفي الحروري: د خوارجو يو مشر ؤ د ابن الزبير د خلافت په ورځو کې له هغه نه د طايف خواته لاړو، هغه د خوراجو لخوا په نيول شويو وينځو کې د حضرت عثمان بن عفان رض لمسۍ هم پيدا کړه، هغه يې په يو لک درهم واخيسته او عبدالملک ته يې ورولېږله. (الأعلام للزرکلي ج٨ ص١٠)

په عراق کې دواعشو د خپلو مخالفينو ښځې وينځې وګرځولې او په سوق النحاس کې يې خرڅې کړې او په ټويټر او نورو خواله رسنيو کې يې د هغوی عکسونه په ډير وياړ خپاره کړل. ابوبکر شيکاؤ داعشي په ربا ورځ د خلکو له کليو ښځې په دې دليل بوتلې چې دوی په انتخاباتو کې شرکت کړی او دوی مرتد شوي دي.

(١٣) د اهل قِبله ؤ مالونه حلال بلل:کله چې خوارجو حضرت عثمان رض شهيد کړ نو د هغه د کور ټول مال دوی د استحلال په عقيده لوټ کړ او ټول بيت المال يې هم له ځان سره يوړ.

( تاريخ الطبري ج۴ص٣٩٣)

نني خوارج هم د خپلو مخالفينو مالونه حلال بولي چې ښه بيلګه يې د کوټ، بټي کوټ، نازيانو، او آچين په ولسواليو کې د مسلمانانو مالونه او ځاروي غنيمت بلل ؤ.

(١۴) قياس کول: پخوانيو خوارجو به هم قياس کولو علامه ابن حزم ليکي: إنّ الخوارج المتقدمون يستدلون بقتال الصديق في قتال الردة، على جواز مقاتلة اهل القبلة، وقالوا: إن هذا کما فعله ابوبکر بأهل الردة.

بل ځای نوموړی ليکي: انهم اشد الناس عملا بالقياس

ژباړه: پخوانيو خوارجو به هم د اهل قبله (مسلمانانو) په وژلو کې د ابوبکر صديق په قتال دليل نيولو او په هغې يې قياس کولو.( الملل والنحل ج١ص١١٦)

په تویټر کې یوه داعشي په خپل دیوال داسې لیکلي ؤ: له رسول الله ص وروسته خلافت د مرتدینو په وژلو قایم شو نن به هم خلافت د مرتدینو په وژلو قایمیږي. دوی اوس هم د مسلمانانو په وژلو کې د ابوبکر صدیق له قتال څخه استدلال کوي او په هغې قیاس کوي.

(۱۵) د اصلي کافرانو څخه د مسلمانانو وژل مهم بلل: امام طبري د بهلول قیصه داسې بیانوي: قال بهلول: نبدأ بهذا العامل الذي قال ما قال، فقال له أصحابه: نحن نريد قتل خالد، فان بدأنا بهذا شهرنا وحذرنا خالد وغيره، فننشدك الله ان تقتل هذا فيفلت منا خالد الذي يهدم المساجد، ويبني البيع والكنائس، ويولي المجوس على المسلمين، وينكح أهل الذمة المسلمات، لعلنا نقتله فيريح الله منه قال:

والله لا أدع ما يلزمني لما بعده، وأرجو أن أقتل هذا الذي قال لي ما قال وأدرك خالدا فاقتله، وإن تركت هذا وأتيت خالدا شهر أمرنا فأفلت هذا، وقد قال الله عز وجل: «قاتلوا الذين يلونكم من الكفار وليجدوا فيكم غلظة» ، قالوا: أنت ورأيك فأتاه فقتله.

ژباړه:بهلول خارجي چې کله د خالد د وژلو اراده وکړه نو وېې ویل: لومړی باید د خالد دا نماینده اوژنو، خو ملګرو ورته اویل: چې که موږ دا اوژنو نو خالد به خلاص شي، هغه سړی چې جوماتونه ړنګوي، او ګرجې او د یهودانو عبادتځایونه جوړوي، هغه له مجوسانو سره مولاة کړی، او ذمیانو ته مسلمانې ښځې په نکاح ورکوي، نو موږ به هغه اوژنو او الله به مو ترې په راحت کې کړي، ...............

(تاریخ الطبري ج۷ص۱۳۰)

پورته عبارت اوګورئ او بیا د خوارجو ویاند عدناني صوتي بیان هم واؤرئ کوم فرق به پکې محسوس نه کړای شی.

(۱۶) د ائمه ؤ او عالمانو لپاره بد لقبونه کارول: كان الخوارج يسمون الخليفة الراشد، عثمان (النعثل) والراسبي يسمى علياً (الجاحد) من شدة بغضه له. خوارجو به حضرت عثمان رض ته نعثل او علي رض ته جاحد ویل(البداية والنهاية ج۱۰ ص ۳۰۷،۲۸۲،۵۹۱)

نعثل په مصر کې یو اوږدې ږیرې والا احمق سړی ؤ چې په عربو کې د هر هغه انسان چې احمق وي او ږیره یې اوږده وي، ویل کیږي (تكملة المعاجم العربية ج۱۰ص۲۵۲)

د ابومسیلمة العدناني بیان چې عنوان یې دی (قل للذين كفروا ستغلبون) واؤرئ: نوموړی په ۱۶ دقیقه ۱۰ ثانیه کې د شیخ ظواهري په اړه داسې وایي: وإن سفاهة الشيخ لا حلم بعده:وإن الفتى بعدالسفاهة يحلم:

په دې اشعارو کې عدناني په وار وار ظواهري ته د سفیه(احمق) نسبت کړی.

د نینوی ولایت اعلامي مکتب یوه ویډیو خپره کړې چې پکې یې امیر المؤمنین ملا منصور ته د عمیل او طاغوت القاب کارولي.

مور په وروسته لیکنو کې د دواعشو تنقیدونه څیړو چې دا تنقیدونه علمي دي او که منبع یې واشنګټن پوسټ او نیویارک ټایمز دی او د هغه استخباراتي کړیو له لورې واردیږي چې تیر ۱۴ کاله امارت ورسره په جنګ تیر کړل؟

# اووم فصل

## د داعش له لورې په اسلامي امارت تنقیدونه او د هغې مستند ځوابونه (علمي څیړنه)

د داعش د میډیایي جنګ په آړه وروسته خبرې کؤو خو داعش په میډیایي برخه کې رسمي او غیررسمي ستوډیوګانې، ویبپاڼې، لري چې د هغې لارې خپل دریځ نورو ته رسوي. زه (لیکوال) یو له هغو کسانو څخه یم چې د داعش میډیا له ډیره وخته تعقیبوم، له هغه وخته چې دوی خلافت نه ؤ اعلان کړی. دابق، وکالة الانباءالحق، اعماق، مؤسسة الفرقان، ترجمان الاساورتي،او......نور ډیر رسمي او غیررسمي میډیایي منابع لري. د اسلامي امارت په آړه په لومړي سر کې د دواعشو رسمي ویب پاڼې المنبرالاعلامي الجهادي (پلیټ فورم میډیا) د اسلامي امارت د خبرونو مرکو او اعلامیو لپاره یوه ځانګړې کړکۍ درلوده، خو دا هر څه هغه وخت ناڅاپه بدل شول چې کله دوی د اسلامي امارت له بیعت څخه نهیلي شول او دلته د حافظ سعید خان بانډ بیعت ورډالی کړ. د اسلامي امارت خلاف لومړی د داعش غیررسمي منابعو سنګر ونیؤو وروسته یې په ټولنیزه میډیا؛ فیسبوک، ټویټر کې پراخ تبلیغاتي جنګ پیل کړ.

څه موده وړاندې د دواعشو په اصطلاح د فرات ولایت اعلامي مکتب یوه ویډیو نشر کړه چې په اسلامي امارت پکې لاابالي تنقیدونه شوي ؤ، په ټویټر کې د ابوطالوت الخراساني، او طاهرجان، او محب حکیم الله په نومونو حسابونه د دې لپاره جوړ شوي دي؛ تر څو د امارت یو مکروه تصویر وړاندې کړي. دوی تل په بیلابیلو ډولونو خپل تنقیدونه عیاروي. مور په دې لیکنه کې دې تنقیدونو ته ځواب وایو، مور د دوی ټول تنقیدونه لومړی وار په وار رانقل کؤو.

په هغه ویډیو کې چې د فرات ولایت د اعلامي مکتب لخوا د داعش په رسمي آدرس نشر شوي ده، خبرو کونکی خارجي داسې وایې: آي په خراسان کې زمور وروڼو: دا فتنې صفونه پاکوي او د دې فتنو په سبب به منافقین څرګندیږي او دوی به خپل کفر په ډاګه کوي( دلته په ویډیویی مقطع کې د جلال اباد مظلوم بندیان ښودل کیږي چې په بمونو الوځول کیږي) دوی به د کفارو او صلیبیانو صف ته ګډیږي او په دې سره به له مؤمنانو څخه جدا کیږي.

نوموړی وړاندې د دې عنوان لاندې چې (د طالبانو د درواغو رسوا کیدل) داسې وايي: موږ چې د ملا عمر د وفات په اړه کوم څه اوریدلي ؤ هغه اوس راته ثابت شول چې نوموړی کلونه پخوا وفات شوی دی. دا هغه مشکل ؤ چې طالبان ورسره له پخوا مخامخ ؤ. د اختر منصور له ټاکل کیدو وروسته هغه چې د ایران دوست دی او د نړیوال کفر سره په نرمۍ شهرت لري، موږ پوه شؤو هغه پیغامونه چې کافرو دولتونو، د ملګرو ملتونه کفري ادارې، امریکا، اروپا، ته لیږل کیږي او هغوی ته پکې ډاډ ورکول کیږي، هغه پیغامونه چې له نړیوال کفر سره په خواخوږۍ ډک دي، هغه پیغامونه چې د الله د دین لوړوالی پکې نشته، ایران ته اسلامي دولت ویل، د حماس او شیعه ؤ په اړه موقف، نورو طاغوتي دولتونو ته اسلامي دولتونه ویل. دالله فضل دی چې په ټولو خبرو موږ پوه شؤو. د ملا عمر په نوم پیغامونه د طاغوت قوتونو لخوا نشریدل. نو موږ ویلی شو چې استخباراتي کړیو (چې هدف یې آی ایس آی ده) د طالبانو د شورى او فیصلو په ارکان کې نفوذ کړی دی، او روافضو او شیعه ؤ په طالبانو کې ریښې غځولي دي او د دوی ټول فرامین د دوی له لورې او د دوی په خوښه صادریږي.

په دې ویډویي کلیپ کې دا خارجي دړې ډوله تنقید کوي

۱. ملا عمر وفات شوی ؤ نو طالبانو ولې د هغه د وفات خبر پټ ساتلی ؤ؟

۲. ملا منصور د پورته یاد شویو علتونو په اساس د مشرۍ وړ نه دی.

۳. طالبان د آی ایس آی ایجنټان دي او دوی امریکا او نورو کافرو دولتونو ته استازي لیږلي دي، دوی حماس، شیعه کافر نه بولي، دوی قطر او نور طاغوتي نظامونه مسلمان بولي.

ابوطالوت الخراساني، چې یو مجهول الهویة کس دی په ټولنیزو شبکو کې د امارت په وړاندې پراخ پروپاګند ته ګومارل شوی دی د لاندیني عنوان لاندې داسې وايي:




زموږ قبیله په خوست، پکتیا او پکتیکا کې میشت دي، موږ د طالبانو سره ډیرې قربانۍ ورکړي ځکه موږ فکر کاوه چې دا یو اسلامي خوځښت دی چې د فساد په وړاندې یې قیام کړی دی. هلته چې صلیبیان افغانستان ته راغلل نو دوی یې په وړاندې

جهاد پیل کړ موږ هم د دوی سره یو ځای د جهاد په صف کې ودریدو، خو له ۲۰۰۸م کال وروسته مو د دوی په کړنو شکونه پیدا شول. دوی د شریعت او خلافت په قیام کې جدي نه ؤ، دوی غوښتل چې صرف د کابل په عرش کیني خو چې په هره بیه وي.

نوموړي وړاندې د هغه علتونو یادونه کوي چې د ده د پورتني سوال ځواب دی.

(۱) طالبان یو قومي او وطني خوځښت دی چې د پوښتنو څخه جوړ دی او د پوښتون د قدرت لپاره د جهاد په نوم جنګ کوي.

(۲) د طالبانو ډیری غړي فاشیست او متعصب دي او د نورو قومونو لکه تاجک، ازبک، هزاره، مجاهدینو سره دشمني لري.

(۳) له طالبانو سره د عالمي جهاد اصلا سوچ نشته بلکې دا یو قومي تحرک دی چې په کابل واک غوړي.

(۴) طالبان په خلافت او د نړی په ګوټ ګوټ کې د مسلمانانو له قضایاؤ څخه په دفاع باور نه لري.

(۵) طالبان د القاعدې مشرانو ته په دې دوکه ورکوي چې له دوی سره به په عالمي جهاد کې ونډه اخلي.

(۶) طالبان په اسلامي نړی کې د فاسدو او مزدورو حکومتونو مشروعیت ته قایل دي.

(۷) طالبان په دیپلوماسی او سیاست باوري دي، اګر که له شرعي اصولو سره په ټکر کې وي هم.

(۸) طالبان ملګري ملتونه او اروپایي ټولنه او نورې کفري نړیوالې مؤسسې مستقلې اداري بولي.

(۹) طالبان د سایکس-بیکو سرحدي تړون ته ژمن دي.

(۱۰) طالبان د خلیج فاسد دولتونه مشروع حکومتونه بولي.

(۱۱) طالبان پاکستان او ایران په راتلونکي کې په اقتصادي او نظامي برخه کې ګډ شریکان بولي.

(۱۲) تیر ۱۴ کاله ټول هغه پیغامونه چې د ملا عمر له آدرسه نشریدل جعلي ؤ او په موږ یې منل لازمي ؤ.

(۱۳) طالبان باور نه لري چې روافض او شیعه مشرکین دي.

(۱۴) طالبان په نړیوالو تړونونو باور لري هغه تړونونه چې د مسلمانانو د کمزوری او د کفارو د واکمنی سبب ګرځیدلي دي.

(۱۵) طالبان په هغه خلافت باور نه لري چې اسلامي دولت قایم کړی دی.

(۱۶) د طالبانو ځینې مشران د پاکستاني استخباراتو سره تړلي دي.

(۱۷) طالبانو له هغو پاکستاني علماؤ څخه مالي او افرادي ملاتړ تر لاسه کوي چې په پاکستاني پارلمان کې چوکۍ لري.

(۱۸) طالبان په ډیورنډ کرښه باور نه لري خو په نورو پولو باوري دي.

(۱۹) طالبان په افغانستان کې یو پاکستانی ریاست قایمول غواړي.

(۲۰) طالبان محمد مرسي ته د خواخوږۍ پیغام لیږلی ؤ، او اخوان المسلمین مسلمان بولي .

(۲۱) طالبان د قطر دولت ورور دولت بولي او هلته يې دفتر جوړ کړی.

(۲۲) طالبانو کافرو دولتونو ته د ډاډ او اطمنان پیغامونه لیږلي دي.

(۲۳) طالبانو څو واري کافرو دولتونو ته سفرونه کړي او د کفارو په غونډو کې یې ګډون کړی دی.

(۲۴) طالبان د پاکستان په ښارونو کې ارام ژوند کوي او په بدل کې پاکستانی دولت کافر نه بولي او په خلاف یې مبارزه جهاد نه بولي.

دواعش په اسلامي امارت نور ډیر تنقیدونه لري خو هغه اصلا ځواب ته اړتیا نه لري ځکه هغه تنقیدونه پخپله د دوی فکري انحراف په ګوته کوي د مثال په ډول؛ موږ به په وروسته لیکنو کې هغه ویډیو درسره شریکه کړو چې ابومحمد التونسي د داعش د حسکة ولایت شرعي او ابومصعب التونسي د دیرالزور شرعي او ابو اسامة العراقي د حسکة ولایت والي په خپل مینځ کې خبرې کوي او دوی طالبان مرتدین بولي ځکه هغوی عبدالحکیم مجاهد ملګرو ملتونو ته د سفیر په توګه لیږلی ؤ او اسامه بن لادن ځکه مرتد ؤ چې د طالبانو د مرتد دولت په ارتداد چپ ؤ العیاذ بالله.

موږ په وروسته لیکنه کې د دې سوالونو علمي څیړنه کؤو.

د خوارجو د تنقیدونه څخه په مجموع کې لاندې ټکي باید ځواب شي.

(الف) اسلامي امارت له ټولو ګاونډیانو سره ښه سلوک غواړي، په داسې حال کې چې ځینې ګاونډیان د مسلمانانو په ربړولو او ځورولو بوخت دي، ولې؟

(با) اسلامي امارت په قطر کې سیاسي دفتر جوړ کړ، ولې؟

(ج) د اسلامي امارت نمایندګان په نړیوالو کنفرانسونو کې برخوال شول او له جنګیدونکو کافرانو سره یې په یوه میز ډوډۍ اوخوړله، ولې؟

(د) د اسلامي امارت زیاتره غړي په پاکستان کې آرام ژوند کوي، ولې؟

(ه) اسلامي امارت له آی ایس آی سره خوږې اړیکې لري، ولې؟

(و) اسلامي امارت ايران اسلامي دولت بولي، له حماس سره خواخوږي ښيي، مرسي مشروع مشر بولي، ولې؟

(ز) اسلامي امارت ټولې کفري نړۍ ته داډ ورکوي چې د دوی لپاره خطر نه دی، ولې؟

(ح) اسلامي امارت په پولو باور لري، نړيوال جهاد ته باوري نه دی، ولې؟

## وړاندوينه

له نبوي ص هجرت څخه وروسته کفار په درو ډلو اوېشل شول، لومړۍ ډله يې جنګيدونکي کافر، دويمه ډله يې د تړونونو لاندې کافر، دريمه ډله يې منافقين ؤ، د لومړۍ ډلې سره جنګ تاکل شوی ؤ، د دويمې ډلې سره جنګ نه ؤ بلکې د مسلمانانو په خير تعامل ورسره کيده په استثناء د ځينې احکامو، خو د منافقانو سره بيا ممتازانه چلند دا ؤ چې هغوی رسول الله صلى الله عليه وسلم آن د مسلمانانو له ټولنې هم ونه شړل.

امام بخاري پخپل سند سره د عبدالله بن عباس څخه نقل کوي چې فرمايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل:«كان المشركون على منزلتين من النبي صلى الله عليه وسلم والمؤمنين، كانوا مشركي اهل حرب يقاتلهم ويقاتلونه، ومشركي اهل عهد لايقاتلهم ولايقاتلونه.» بخاري ج٢ ص٣٠۵

که نبوي سيرت ته وکتل شي، له هجرت وروسته نبي کريم صلى الله عليه وسلم له ځينې کافرانو سره معاهدې، مصالحې، موادعې، تړونونه وکړل او له ځينو نورو سره يې هغه جنګ ته دوام ورکړ چې د دوی له لورې د مسلمانانو په خلاف اعلان شوی ؤ. محمد بن كعب القُرَظِي وايي: لما قدِم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينةَ وادعَته يهودَها كلُّها ، وكتب بينه وبينهم كتاباً ، وأَلحَقَ كلَّ قومٍ بحُلَفائهم . وكان فيما شَرَط عليهم ألاّ يُظاهروا عليه عدواً ، ثُمّ لما قدم المدينة بعد وَقعةِ بدرٍ بَغَتْ يهود ، وقطعَتْ ما كان بينها وبين رسولِ الله صلّى الله عليه وسلم من العهد ، فأرسل إليهم فجمعهم وقال : « يامعشر يهود أسلموا تَسلموا ، فوالله إنكم لتعلمون أني رسول الله » ( السيرالكبير ج۵ص١٦٩٠، الأم للإمام شافعي ج۴ص١٢٩ )

د لغت په کتابونه کې د ترون لپاره بيلابيل لفظونو په کار راوړل شوي دي، لکه معاهده، مصالحه، موادعه، مهادنه، مواضعه، مهاوده، مسالمه، صلح، استئمان. خو د دوی ټولو په مينځ کې مهادنه موادعه معاهده مسالمه استئمان، صلح مترادف دي (شرح حدود ابن عرفة ج۱ صـ۲۲۶)

پورته مرادف اصطلاحات احناف داسې تعريفوي : له مشرکينو سره معلومه موده جنګ بندي کول، له کافرانو سره معلومه موده په بدل د مال کې يا بغير له بدل څخه صلح کول(السيرالکبير ج۵ صـ۱۷۸۰، تحفة الفقهاء للسمرقندي ج۳ صـ۵۰۷ )

حنبليان يې داسې تعريفوي: تر يوې مودې په جنګ نه کولو سره موافقه کول (الانصاف للمرداوي ج۴ صـ۲۱۱، کشاف القناع للبهوتي ج ۳ صـ۱۰۳)

مالکيان يې داسې تعريفوي: له حربي کافر سره د يو مسلمان هغه ترون چې په اساس يې جنګ بند شي او کافر د اسلام د حکم لاندې نه وي(الشرح الکبير للدردير ج۲ صـ۲۰۶)

شافعيان يې داسې تعريفوي: له کافرانو سره د سولې هغه ترون چې تر يوې مودې پکې جنګ بندي شوي وي ، په عوض وي يا بي عوضه (فتح الباري ج۶ صـ۲۵۹، مغني المحتاج ج۴ صـ۲۶۰)

## د کفارو سره د جنګ بندی دلايل

امام محمد ؒ وايي: ژباړه: په هغه صورت کې چې له مسلمانانو سره د کفارو په وړاندې د جهاد کولو وس وي، نو موادعه (جنګ بندي) ورسره رواء نه ده ځکه په دې سره يا خو فرض جهاد صورةً او معنیً پاتې کيږي، يا وروسته کيږي، چې دواړه کاره د امير لپاره له ضرورت پرته نارواء دي، ځکه الله تعالی فرمايي:وَلاتَهِنُوا وَلاتَحزَنُوا وأَنتُم الأَعلَونَ إن كُنتم مُومِنِين* او فرمايي: فلاتَهِنُوا وتدعُوا إلِى السَّلمِ وأنتم الأَعلَونَ* (او تاسې مه سستيږئ او مه خفه کيږئ، تاسې به سرلوړي وی که مؤمنان وی، او مه سستيږئ او دوی سولې ته مه رابولئ او تاسې به سرلوړي وی) او په هغه صورت کې چې له مسلمانانو سره قوت نه وي او په جهاد قادر نه وي نو په داسې حالت کې موادعه(له کافرانو سره جنګ نه کول) رواء دي ځکه په دې کې بيا د مسلمانانو خير دی (السيرالکبيرج۵ ص۱۶۸۹، مبسوط السّرخسي ج۱۰ ص۸۶، تبيين الحقايق ج۳ ص۲۴۵-۲۴۶، تفسير أحكام القرآن للجصاص ج۳ ص ۷۰-۴۲۸،۶۹-۴۲۹)

وإِن جَنَحُوا لِلسَلمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ* فَفِي الآيةِ الكريْمةِ دَلالةٌ عَلى مَشْرُوْعِيَّة المُصالحةِ والمُوادَعَةِ إذا طَلَبها المُشركُونَ ومالُوْا إليها وإذا كان فِي الصلحِ مصلحةٌ فلا بأسَ أن يَبتَدِئَ المسلمون إذا إحتاجُوا إليهِ. ژباړه: «که دوی سولې ته چمتوالی اوښودو نو ته هم سولې ته مايل شه » دا عزتمن آيت کې لاسوند دی د دې لپاره چې له کافرانو سره سوله، جنګ بندي رواء ده، خو که کله په سوله کې د مسلمانانو لپاره خير وي او دوی سولې ته آړ وي، نو بيا که مسلمانان لومړی د سولې وړانديز

وکړي هم څه باک نشته (تفسير الطبري ج١٤ صـ٤٠، تفسير البغوي ج٣ صـ٣٧٣، أحكام القرآن للجصاص ج ٣ صـ٧٠-٦٩، فتح الباري ج٦ صـ٢٧٥،عمدة القاري بشرح البخاري ج ١٥ صـ٩٥)

امام شافعيؒ او امام محمدؒ له محمد بن كعب القُرَظي څخه آثر نقل کړی:لما قَدِم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينةَ وادَعَتْه يهودها كلُّها وكتب بينهم كتاباً الخ«کله چې رسولﷺ مدينې منورې ته راغی له ټولو يهودانو سره يې جنګ بندي وکړه او يو خط يې ورسره وليکه(السير الكبير ج٥ صـ١٦٩٠، كتاب الأم للشافعي ج٤ صـ١٢٩)

له کافرانوسره جنګ بندي او له هغوی څخه د پيسو بدل کې د سولې په غوښتو علماء له دې حديث څخه دليل راوړي: امام ابن سعد، ابن اسحاق، ابويوسف، عبدالرزاق، بيهقي، واقدي په خپلو خپلو سندونو سره نقل کوي: أَرسل النَّبي صلى الله عليه وسلم فِي غَزوةِ الخندق إلى عُيَيْنةَ بن حِصنٍ والحارثِ بنِ عَوْفٍ وهما قائدا غَطفان « أَرَأَيتَ لو جعلتُ لَكَ ثُلث ثِمار الأَنصار أتَرجِعُ بِمن مَعك مِن غَطفانَ وتُخذِّل بين الأحزاب؟» وفي رِوايةٍ أرسل عُيَينةُ بن حصنٍ إلى النبي صلى الله عليه وسلم: تُعْطينا ثمرالمدينةِ هذهِ السَّنةَ ونَرجِعُ عنك و نُخلِّي بينك وبين قومِك فتُقاتلهم؟ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا، قال: فنِصفُ الثَّمر؟ فقال: نعم. ثم أرسل رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى سعد بن مُعاذ وسعد بن عُبادة وهما سيّدا الحيَّين فاستشارهما، وقد حضر عُيينةُ وقال: أُكتُبْ بَيننا كتاباً فدعا رسول الله صلى الله عليه وسلم بِصَحيفةٍ و دَواةٍ ليكتب بَينهم فقالا يارسول الله أُوحِيَ إليك في هذا؟ فقال: لا، ولكني رَأيت العَرَبَ قد رَمَتْكُم عَن قوسٍ واحدةٍ، فقلت أَرُدُّهم عنكم. فقالا: يارسول الله والله إنَّهم ليأكلون العِلْهَزَ في الجاهليَّةِ من الجهد، وما طعموا منّا قَطُّ أَن يأخُذوا ثَمرةً إلا بشِراءٍ أو قِرَى فحين أكرَمنا الله و هَدانا الله بِك و أيَّدنا بِك نُعطِيْ الدنيَّة؟ لا نعطيهم إلا السَّيف فشقَّ رسول الله صلَّى الله عليه وسلم الصحيفةَ وقال: اذهبوا لا نعطيكم إلا السيف.

ژباړه: عيينة او حارث ته رسول الله صلى الله عليه وسلم پيغام وليږلو، که موږ تاسې ته د مدينې د انصارو له کجورو څخه دريمه درکړو، تاسې به غطفان له موږ څخه واپس کړی، چې احزاب (قبايل) شکست اوخوري؟ په بل روايت کې دي چې عيينة رسول الله ته ځواب وليږلو، که ته موږ ته د مدينې له ميؤو څخه د دې کال ټوله ميوه راکړې موږ به لاړ شو او تا او ستا قوم به سره پريږدو، د الله رسول ورته اوفرمايل: نه، هغه اويل نو نيمې؟ د الله رسول ورته اوفرمايل: هو. بيا رسول الله صلَّى الله عليه وسلم د دؤو قبيلو مشرانو سعد بن معاذ او سعد بن عبادة ته خبر وليږلو. له دوی سره يې مشوره وکړه چې عيينة هم ناست ؤ، عيينة اويل: چې خط وليکئ . د الله رسول کاغذ او سيي راوغوښته ترڅو خط وليکي. دوی دواړو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته اويل: يارسول الله تاته په دې آړه وحي شوي ده؟ رسول اللهﷺ اوفرمايل: نه خوما چې وليدل چې ټول عرب تاسې له يوې ليندی څخه ولي نو ما وغوښتل دوی له تاسې وګرځوم، دوی دواړو اويل: يارسول الله په الله قسم دوی به په جاهليت کې له ډيرې لوږې غټ ملخان خوړل، او له موږ څخه يې کجورې له بيې او ميلمستيا پرته نه دي خوړلي، نو چې اوس الله تعالى موږ عزتمن کړو او ستا په سبب يې راته هدايت وکړ نو موږ به په دين کې سرټيټي او ذلت برداشت کؤو؟ موږ دوی ته له تورې پرته هيڅ نه ورکؤو. رسول الله صلى الله عليه وسلم خط څيرې کړ او دوی ته يې اويل: لاړ شئ موږ تاسې ته له تورې پرته بل څه نه درکؤو.

(الطبقات الکبری لابن سعد ج۲ صـ۷۳،السيرة لابن اسحاق ج, صـ۲۲۳، کتاب الخراج للامام ابويوسف صـ۲۲۵، مصنَّف عبدالرزاق ج۵ صـ۳۶۸-۳۶۷،دلايل النبوة للبيهقي ج۴ صـ۴۳۱-۴۳۰،المغازي للواقدي ج۲ صـ۴۷۹.۴۷۷،تلخيص الحبيرلابن حجر ج۴ صـ۱۳۱، مصنّف ابن ابي شيبة ج۱۴ صـ۴۲۰،مجمع الزوائد للهيثمي ج ۶ صـ۱۳۲)

په پورته ليکل شوي حديث کې رسول الله صلی الله عليه وسلم له عيينة او حارث سره د مال په بدل کې سوله اومنله خو دا چې دا کار د اصحابانو د هوساينې لپاره ؤ او دوی د تکليف برداشت ته تيار ؤ نو ځکه يې وروسته لغوه کړ کنه پخپل ذات کې دا عمل رواء ؤ.

## د خوارجو د تنقيدونو ځيړنه

امام محمد ؒ له کافرانو سره موادعه معنوي جهاد بولي: کما أَنّ المُوادعةُ هي جهادٌ معنىً اوهي من تَدبيرِ القِتالِ والجهاد فإنّ على المُقاتل أن يَحفظَ قُوَّةَ نفسه أولاً ثُمّ يطلبَ العُلُوَّ والغلبةَ إذا تمكن من ذالك وربما يکون فِي الموادعةِ حفظ لقوّة المسلمين.

ژباړه:موادعه هم معنوي جهاد دی او د جهاد يو تدبير دی. ځکه په مجاهد لازمه ده چې لومړی خپل قوت وساتي وروسته چې کله ممکنه شي غلبه او فتح اوغواړي. نو ډيرکله په موادعه سره د مسلمانانو قوت وساتل شي(السيرالکبير ج۵ صـ۱۶۸۹-۱۶۲۴، المبسوط للسرخسي ج۱۰ صـ۸۶)

خو ځينې بيا تنقيد کوي چې سورة براءة يا سورة توبه د نزول له آړخه آخري سورة دی او د مسالمې يا موادعې حکم په انفال سورة کې بيان شوی چې لومړی ورته ناسخ بللی شو هلته چې د کافر په وړاندې يواځې يو حکم دی يا جزيه يا وژل. خو امام جصاص د دې تنقيد په ځواب کې ليکي: ولم يختلفوا أنّ سورةَ براءة التي فيها الأمرُ بالقِتال من اخرِ ما نزل من القرآن وسورةُ الأنفال وفيها الأمرُ بالمسالمة نزلتْ عَقِيْبَ بَدرٍ بيَّن فيها حكم الأَنفالِ والغنايمِ والعهودِ والموادعاتِ فحكمُ سورةِ براءة مستعملٌ على ما وَرَد وماذكر من الأمرِ بالمسالمة إذا مال إليها المشركون حكمٌ ثابتٌ أيضاً وإنما اختلف حكمُ الآيتينِ لإختلافِ الحالين فالمسالمةُ والمهادنةُ في حالِ قِلّة عدد المسلمين وكثرةِ عدوِّهم والحال التي أمر فيها بالقتال هي حال كَثرَة المسلمين على عدوّهم.

ژباړه: د علماؤ ترمينځ په دې آړه څه اختلاف نشته چې سورة براءة هغه چې پکې په جنګ امر شوی له سورة انفال څخه ورسته دی هلته چې په مسالمه امر شوی، چې له بدر وروسته نازل شو پکې د غنيمتونو اوتړونونو حکم ښودل شوی ؤ. نو د سورة براءة حکم په خپل ځای دی او په سورة انفال کې چې د مشرکانو د ميلان په صورت کې د مسالمې حکم هم په خپل ځای دی. د آيتونو ترمينځ تفاوت د حالتونو په تفاوت پورې آړه لري. مسالمه او مهادنه د مسلمانانو د شمير د کموالي او د کافرانو د زياتوالي په صورت کې دی او د جنګ حکم بيا د مسلمانانو د زياتوالي په صورت کې دی. (أحكام القرآن للجصاص ج٣ صـ٦٩)

## خو آيا د کافرانو سره موادعه يا متارکه هر څوک کولی شي که يواځې امام دا چاره تر سره کولی شي؟

ژباړه او لنډيز: د فقهاؤ غټه ډله(جمهور) په دې آند دي چې معاهدې او تړونونه يواځې امام يا د هغه نائب سرپرستي کولی شي، خو د يوه ځانګړي اقليم والي له کافرانو سره د مصلحت په بنياد مهادنه کولی شي. ګويا هغه د خپل اقليم په آړه خودمختاره دی خو په شرط د دې چې په مصلحت ولاړ وي.

( حاشية الدسوقي على شرح الكبيرصـ٢٠٥، جواهر الإكليل ج١ صـ٢٦٩، الخرشي على الخليل ج٣ صـ١٥٠، الأم ج٤ صـ١١١، العزيز شرح الوجيزج١٣ صـ٥٥٤، روضة الطالبين ج١٠ صـ٣٤٣، المهذب ج١٨ صـ٢٢١، مغني المحتاج ج٤ صـ٢٦٠، المغني ج١٠ صـ٥١٢،كشاف القناع ج٣ صـ١٠٣، المبدع ج٣ صـ٣٩٨،)

احناف په دې آړه داسې نظر لري: ژباړه او لنډيز: د کافرانو سره د تړونونو واک يواځې تر امام يا نايب محدود نه دی بلکې د مسلمانانو يوه ډله د امام له اجازې پرته کولی شي چې له کافرانو سره جنګ بندي وکړي ځکه د تړون بنياد په مصلحت ولاړ دی نو چې د مسلمانانو پکې خير وي رواء دی( بدائع الصنائع ج٩ صـ٤٣٢٥-٤٣٢٤، عالمكيري ج٢ صـ١٩٦)

خو بيا هم فقهاؤ د موادعې لپاره د مسلمانانو مصلحت او نفعه شرط بولي.

ژباړه او لنډيز: په ټولو تړونونو کې د مسلمانانو مصلحت او ګټه شرط دی او دې تړونونو لره ضرورت وي. د بيلګې په ډول مسلمانان کمزوري وي او کافران ځواکمن وي، مسلمانان پخپلو ځانونو د هلاکت څخه ويريږي ځکه دوی ځواک نه لري يا له

نورو وجو په جنګ بندی کې خیر وي(المبسوط ج۱۰ صـ۸۶، بدئع الصنائع پخوانی حواله، فتح القدير ج۴ صـ۲۹۳، تبيين الحقايق ج۳ صـ۲۴۵، البحرالرائق ج۵ صـ۸۵، الفتاوى الهندية عالمكيري ج۲ صـ۱۹۶)

## د تړون او جنګ بندی لپاره موده

د کفارو سره د جنګ بندی تړونونه په درې ډوله دي.

۱- مؤقته ( ټریوې معلومې مودې)

۲- مؤبده ( دایمي )

۳- غیر مؤقته ( چې وخت پکې نه وي معلوم شوی او د وخت له تعین پرته وي)

لومړی ډول تړونونه د ټولو فقهاؤ په اتفاق رواء دي خو موده باید څومره وټاکل شي؟ په دې آړه د احنافو فقهاؤ رایه دا ده چې د جنګ بندی تړونونو لپاره ټاکلی شرعي حد نشته بلکې څومره موده چې مصلحت وي او د مسلمانانو لپاره پکې خیر وي ټاکل کیدلی شي. احناف فقهاؤ داسې لیکي: وبَري الإمام محمد تبعاً لشَخَيه أبي حنيفة وابي يوسفَ أنَّ المُعاهَدةَ لايَقتصرُ جوازُها على عَشْرَ سنينَ كما هو مَروِيٌّ في صلح الحديبيةِ بل إنَّ ذالك مفوَّضٌ إلى رأي إمام المسلمين ومايراه من المصلحةِ والحاجةِ فقد تكون المصلحةُ والخيريةُ في تجاوز هذه المُدَّةِ إلى مُدَّةٍ أخرى أكثر منها أما إذا لم تكن المدَّةُ خيراً ولم يكن فيها مصلحة فإنَّه لايجوز تعَدِّيها.

ژباړه: د امام محمد، د خپل شیخینو، امام ابوحنیفه او امام ابویوسف په پلوی رایه دا ده چې له کافرانو سره د تړونونو رواء والی په لس کلنې مودې پورې تړلی نه دی. څنګه چې دا موده د حدیبیې په سوله کې نقل شوې، بلکې دا چاره د مسلمانانو د امام رایې ته سپارل شوې ده، ځکه کله له دې مودې څخه د تړون په غځولو کې خیر وي. هو کله که پکې د مسلمانانو خیر نه ؤ نو بیا له دې مودې څخه تجاوز رواء نه دی (مبسوط السرخسي ج۱۰ صـ۸۶، الخراج للامام ابويوسف صـ۴۲۴، فتح القدير ج۴ صـ۲۹۳-۲۹۴، تبيين الحقايق ج۳ صـ۲۴۵-۲۴۶،البحرالرائق ج۵صـ۸۵، الاختيار لتعليل المختارج۴ صـ۱۹۰، مجمع الانهر ج۱صـ۶۳۷، اللباب شرح الكتاب ج۴صـ۱۲۰، عمدة القاري ج۱۴صـ۱۸- ج۱۵صـ۱۰۵،)

مالکي علماء هم د موضوع په آړوند ورته نظر لري: إنَّ مُدَّةَ المُعاهدةِ غيرُ محدودةٍ تُتركُ لإجتهادِ الإمامِ وقدرِ الحاجةِ ولكن لايطيل فيها لِما فيها قد يحدثُ من قُوَّةٍ للإسلامِ والمسلمين ويندبُ ألا تزيد على أربعةِ أشهرٍ إلا مع العُجز عن الجهادِ وهذا إذا استوت المصلحة في تِلك المُدَّةِ وغيرها وإلا تعيَّن ما فيه المصلحةِ.

ژباړه: یقیناً چې د تړون موده ټاکل شوې نه ده، د امام اجتهاد ته سپارل کیږي او په حاجت پورې آړه لري، خو بیا هم غوره دا ده چې که له جهاد څخه بې وسه نه وي له څلورو میاشتو بې وانه ړوي، خو دا د مصلحت په صورت کې، که کله مصلحت له دې په زیاته موده کې ؤ نو بیا مصلحت غوره دی. ( جواهر الإكليل ج۱صـ۲۷۰-۲۶۹، الخرشي على الخليل ج۳صـ۱۵۱،

المعيارالمعرب للونشريسي ج۶صـ۲۰۸، الشرح الكبير للدردير ج۲صـ۲۰۶ ، الكافي لإبن عبد البر ج۱صـ۴۰۴، شرج السنة للبغوي ج۱۱صـ۱۶۱، الغاية القُصوى ج۲صـ۹۶۱)

له شافعي عالمانو د سکالو په ارتباط دوه رايې نقل شوي.

لومړۍ چې د خطابي او ابن حجر رايه ده وايي: په دې آړه پريکړه د امام اجتهاد پورې تړل شوي ده. (معالم السنن ج۴صـ۸۰، فتح الباري ج۶صـ۲۸۲)

دويمه رايه پخپله له امام شافعي او د مذهب له نورو عالمانو نقل شوي ده چې له لسو کالو زياته موده جنګ بندي رواء نه ده.ژباړه او لنډيز (الأم للشافعي ج۴صـ۱۱۰، مغني المحتاج ج۴صـ۲۶۰،العزيز شرح الوجيز ج۱۳صـ۵۵۹-۵۵۶، حاشية البجِيرمي على المنهج ج۴صـ۲۵۸، شرح السنة ج۱۱صـ۱۶۱)

حنبلي او زيدي فقهاء داسې وايي: لاتجوز الهدنةُ إلا إلى مدَّةٍ مقدَّرةٍ معلومةٍ وإن طالت على ما يره الإمام من المصلحة لأنَّ ما وجب تقديره وجب أن يكون معلوماً ولأنها عَقدٌ يجوز في أقل من عشرٍ فجازت في أكثر منها. ولأنَّه إنما عقدها للمصلحةِ فحيث وجدت المصلحة جازت المعاهدة تحصيلاً للمصلحةِ.

ژباړه: له کافرانو سره جنګ بندي له يوې معلومې نيټې پرته رواء نه ده، هغه موده که ډيره اوږده وي هم، خو چې امام پکې خير ويني، ځکه د کوم شي چې اندازه کول لازم وي د هغې د اندازې تعين هم لازم وي. او بل دا چې دا داسې تړون دی چې له لسو کالو په کمه موده هم رواء دی نو په زياته کې به هم رواء وي، بله داچې دا تړون د مصلحت لپاره کولی شي نو چې کوم ځای کې مصلحت وي دا تړون به هم رواء وي(المغني لإبن قدامة ج۱۰صـ۵۱۰-۵۰۹،المحرر ج۲صـ۱۸۲، الإنصاف ج۴صـ۲۱۲، المبدع ج۳صـ۳۹۸، كشاف القناع ج۳صـ۱۰۴، مطالب اولي النهى ج ۲صـ۵۸۷-۵۸۶، البحرالزخار ج۶صـ۴۴۸)

خو له حنبلي فقهاؤ څخه دويم روايت دا دی چې له لسو کالو زياته موادعه رواء نه ده خو که مسلمانانو وکړه نو عقد صحيح دی په کم له لسو کالو کې خو له لسو کالو تيريدو وروسته په مسلمانانو وفا لازمه نه ده(حدائق الأزهارمع شرحه السيل الجرار ج۴صـ۵۶۵-۵۶۴ )

## دويم ډول مؤبده يا دايمي جنګ بندي ده.

له کافرانو سره دايمي جنګ بندي د امت د ډيرى عالمانو په آند نارواء ده ځکه په دې سره فرض جهاد پاته کيږي. علامه دکتور وهبة الزحيلي په دې آړه د علماؤ اقوال نقل کړی دی(آثارالحرب صـ۶۷۵)

خو امام محمدؒ په سيرکبير کې يوه جزئيه راوړې چې له هغې څخه د دايمي جنګ بندی رواء والی فهمولی شو: وكذالک إن كانت المواادعةُ مؤبَّدةً فليس يَنبغي لهم –للمسلمين- أن يُبطلوا المواادعةُ وإن قدروا على قتالهم حتى يَستَنقِذوا الرهن او يموت الرهن أجمعون او يرضوا بِذالك فحينئذٍ لا بأس بقتالهم لأنَّ المانعَ من النبذِ مراعاةُ حقّ الرهن و لوجود إحدى هذه الخِصال يَزول المانع(السير الكبير ج٥ص١٧٥٩-١٧٥٨)

له کافرانو سره داسې جنګ بندي چې اصلا نيټه پکې نه وي ټاکل شوي څه حکم لري؟

## له کافرانو سره غير محدوده جنګ بندي

هغه تړون چې نيټه يې نه وي معلومه بلکې تر يوې نامحدودې نيټې پورې پکې جنګ بند شوی وي؛ په اړه يې احناف علماء داسې وايي: لو أنَّ جُنداً من المشركين حاصروا مَدَائِنَ المسلمين فخافهم المسلمون على أنفسهم و ذَرَارِيِّهم فقال لهم المُسلمون نُصالحكم على أَن نُعطِيكُم عَشرةَ آلافِ دِينارٍ على أن تَنصرِفوا عنَّا إلى بلادكم أو قال المشركون للمسلمين: صالِحونا على أن تُعطونا عشرةَ آلاف دينارٍ على أن ننصرف عنكم فرضُوْا وقبضُوْا ذالك الجُعلَ، ثُمَّ إن المسلمين رأوا منهم عورةً قبل أن يَنصَرِفوا عنهم وبعد ما انصَرفوا قبل أن ينتهوا إلى بلادهم فليس يَنْبغي لهم أن يُغيروا عليهم حتى يَنبُذوا إليهم أو يَرجع القوم إلى بلادهم للصلح والمواادعة التي جرَتْ بين الفريقين.

ژباړه: په هغه صورت کې چې د مشرکانو يو لښکر د مسلمانانو يو ښار محاصره کړي او مسلمانان له دوی څخه په خپلو ځانونو او اولادونو اوريږي، مسلمانان دوی ته وړانديز وکړي چې تاسې واپس شئ او له موږ سره جنګ مه کوئ موږ به تاسې ته لس زره دينار درکړو، يا مشرکانو مسلمانانو ته دا وړانديز وکړ، دوی په دې رضا شول او هغه مال يې واخيست خو دوی لا واپس شوي نه ؤ او خپلې خاورې ته نه ؤ رسيدلي چې مسلمانانو له دوی څخه يو خلاف عمل وليد، دوی ته رواء نه دي چې په هغوی حمله وکړي تر څو چې يې په برابره توګه خپل عهد دوی ته ورغورځولی نه وي، ځکه د دوی تر مينځ سوله او مواادعه موجوده ده. ( السيرالكبير ج٥ص١٧١٢-١٧١١، شرح السير الكبير للسرخسي ج٥ص١٧١٢)

پورتنی فقهي جزئيه كه عراقي خوارج اوبني شايد په امام محمد ؒ هم د كفر فتوی وركړي العياذ بالله. كه مسلمانان د كافرانو له لورې محاصره شي او مسلمانان ورته د دوی د خونديتوب په بدل كې د پيسو وړانديز وكړي او كافران يې اومني، رواء ده خو هغوی چې په دين كې د افراط او غِلو مرتكب شوي، دا عمل به شايد د مسلمانانو له لورې كافرانو ته جزيه اوبولي او فتوی به وركړي چې مسلمانان دې ټول ځانونه هلاک کړي خو له داسې يوه تړونه دې ډډه وکړي. خوغراء شريعت بيا د مسلمانانو حالت ته په کتو مسلمانانو ته احکام راليږلي دي.

که له کافرانو يا مرتدينو سره تړون له نيټې تعين پرته ؤ؛ جواز ته يې احناف علماء تللي دي. د مالکيه يو روايت هم دا دی او د امام احمد بن حنبل څخه هم يو روايت د رواء والي دی. له امام شافعي څخه هم امام مزني د جواز روايت نقل کړی دی( بدائع الصنائع ج٩ص٤٣٢٧، أحكام القرآن لإبن عربي ج٤ص١٧٨٩، الإفصاح لإبن هبيرة ج٢ص٢٩٦، مختصرالمُزني بهامش الأم ج٣ص٤٠٠-٣٩٩)

دشافعيانو او حنبليانو او مالکيانو او زيديانو څخه دويم روايت د عدم جواز دی( الأم ج۴ص۱۱۱-۱۱۰،المهذب مع تکملة المجموع ج۱۸ص۲۲۲، روضة الطالبين ج۱۰ص۳۳۶-۳۳۵،الشرقاوي على التحرير ج۳ص۴۶۷، الوجيز ج۲ص۲۰۴،المغني ج۱۰ص۵۰۹، المبدع ج۳ص۳۹۹، الانصاف ج۴ص۲۱۳-۲۱۲،کشاف القناع ج۳ص۱۰۴،مطالب اولي النهى ج۲ص۵۸۷، الافصاح ج۲ص۲۹۶، البحرالزخار ج۶ص۴۴۹)

خو محققين علماء موادعه او مهادنه له توقيت مطلقه هم رواء بولي چې دا د شيخ الإسلام ابن تيمية او د هغه محقق شاګرد علامه ابن قيم الجوزي نظر هم ده ( مجموع فتاوى ابن تيمية ج۲۹ص۱۴۰، أحکام أهل الذمة لإبن القيم ج ۲ص۴۹۰-۴۷۶،زاد المعاد ج۳ص۱۴۶)

که کافران له معاهدې ورورسته له مسلمانانو سره دوکه وکړي نو مسلمانانو ته رواء ده چې په دوی حمله وکړي، خو سوال دا دی چې آيا د کافرانو او مرتدينو له لورې د غدارۍ وروسته بيا هم مسلمانان کولی شي چې موادعه وغځوي او يا په دوی لازمه ده چې د غدارۍ په صورت مسلمانان بايد وجوباً له دوی سره جنګ شروع کړي؟

د فقهاؤ په ټولو نصوصو کې هيڅ ځای هم د غدر په صورت په کافرانو د حملې لپاره د وجوب کلمه نه ده کارول شوي بلکې په ټولو مواردو کې د جواز کلمه کارول شوې چې مسلمانانو ته بيا هم د حملې د کولو او نه کولو واک ورکول شوی. لاندې مورږ د فقهاؤ يو څو نصوص وړاندې کؤو.

إنَّ المُعاهِينَ إذا نَقضُوا العهد يَجوز للمُسلِمينَ أن يُقاتلوهم بدون نبذٍ او إعلام.......... الخ ( بدائع الصنائع ج۹ص۴۳۲۷-۴۳۲۶، فتح القدير ج۴ص۲۹۴، تبيين الحقائق ج۳ص۲۴۶، البحرالرائق ج۵ص۸۶، حاشيه ابن عابدين ج۴ص۱۳۴، الفتاوى الهندية ج۲ص۱۹۷، مجمع الأنهر ج۱ص۶۳۸،) دلته د عهد د ماتوالي په صورت کې د جواز کلمه کارول شوي ده.

امام محمد ؒ وايي: إذا کان النقض من قِبَلِهم إما بجُندٍ أرسلوهم لقتال المسلمين أو برسولٍ أرسلوه إلى إمام المسلمين ينبذون إليه فإنه لابأس للمسلمين هنا أن يُغيروا.......... الخ( السير الکبير مع شرح السرخسي ج۵ص۱۷۰۸-۱۶۹۸) دلته هم د لابأس کلمه کارول شوې ده.

په نورو فقهي عباراتونو کې هم د لابأس او يجوز........... الفاظ کارول شوي دي( الميزان الکبرى ج2ص۱۸۶، الخرشي على الخليل ج۳ص۱۳۹-۱۴۸، الأمُّ للشافعي ج ۴ص۱۰۸-۱۰۷، روضة الطالبين ج۱۰ص۲۳۷، مغني المحتاج ج۴ص۱۶۲-۱۵۸، المغني ۱۰ص۵۱۵-۵۱۳،زادالمعاد ج۳ص۱۳۷-۱۳۶، کشاف القناع ج۳ص۱۳۴-۱۳۲،) په پورته ټولو مصادرو کې د کافرانو له لورې د جنګ بندی د ماتولو په صورت کې هيڅ ځای هم مسلمانانو ته په بدل کې وجوبي حکم نه دی شوی .

## لنډيز

له پورتنيو فقهي نصوصو لاندې ټکي څرګنديږي

الف .له کافرانو سره د جنګ بندی تړونونه رواء دي.

با – که دا تړونونه د مودې له ياد پرته وي هم رواء دي.

ج – که کافران د مسلمانانو سره په شوي تړون کې غدر وکړي نو مسلمانانو ته په دوی حمله رواء ده.

د – خو په مسلمانانو باندې لازمه نه ده چې په دوی دې حمله وکړي.

هـ - که مسلمان امير بيا هم له دوی سره په تړون کې مصلحتويني ورسره کولی يې شي، خو په شرط د دې چې اسلامي شعاير به پکې ساتل شوي وي، او د مسلمانانو د سپکاوي سبب به نه وي.

و - دايمي تړون هم د ځينو فقهاؤ په آند رواء دی.

له همدې ځايه د خوارجو او د اسلامي امارت ضد کړيو هغه تنقيد ته ځواب اويل شو چې وايي: اسلامي امارت ولې ځينې کافرو دولتونو ته ډاډ ورکوي او له هغوی سره جنګ نه کوي، چې برعکس اسلامي دولت له ټولې نړۍ سره جنګ اعلان کړی دی؟

دا خو نه له نبوي سيرت سره آړخ لګوي او نه نظامي اصول دي چې ټولو دښمنانو ته په يو وار د جنګ اعلان وکړه بلکې دا هغه احساساتي او جذباتي برخورد دی چې پايلې يې موږ تل بې ګټې ليدلي. د جهاد ستر قائدص لومړی له قريشو سره جهاد اعلان کړ، په داسې حال کې چې له يهودانو يې سره تړونونه وکړل او وروسته يې د حديبيې په صلحه کې په يوه منطقي او عميقه وينا کې قريشو ته داسې پيغام وليږلو: يا ويحَ قُريشٍ لقد أكلتْهم الحربُ ماذا عليهم لو خَلُّوا بينِي وبينَ سائرالعربِ؛ فإن هم أصابوني كان ذالك الذي أرادوا وإن أظهرنِيَ الله عليهم دخلوا فِيْ الإسلام وافرين؛ وإن لم يفعلوا قاتلوا وبهم قُوَّةٌ.

ژباړه: قريشو لره دې هلاکت وي دوی خو جنګ اوخوړل، کاش که دوی زه او قريش سره پريښوولي وی، نو که زه مغلوب شوي وای د دوی هدف به خپله حاصل شوی وای، او که زه د خدای په فضل غالب شوی وی نو يا به دوی ټول په اسلام کې داخل شوي وی يا به دوی زما سره په داسې حال کې جنګ کولو چې دوی به قوي شوي ؤ.

زموږ ډير مجاهدين ورونه له دې احساساتي شعار څخه ناوړه استعمال شوي دي، چې ګواکې د پولې په دواړو غاړو کې جهاد فرض دی، او دا کوم منطق دی چې په تورخم راپورې غاړه دې جهاد فرض وي او د تورخم پورې غاړه دې جهاد نه وي فرض؟

هوکې دا پرڅاي خبره ده چې د جهاد فرضيت پوله نه لري خو د جهاد لپاره سنګر ټاکل بيا پوله لري او دا له نبوي سيرته ښه واضحه ده، رسول الله صلی الله عليه وسلم په ټولو محاذونو کې جنګ نه ؤ اعلان کړی او نه يې کافرانو ته داسې تهديدونه ورليږل چې له وسه يې پوره نه ؤ. دا يو خارجي او په جهاد کې يو افراطي فکر دی چې موږ دې په يو وار له ټولې نړۍ سره جنګ اعلان کړو. هغوی چې له ټولې نړۍ سره جنګ اعلان کړ او ټول صليبيان يې په لوی لاس ځان ته متوجه او يو وار بيا يې د دوی پاشل ائتلاف سره راټول کړ او د اسلامي خلافت له ويرې يې د نړۍ ټول کافران په يوه ميز سره راټول کړل، د همدې خارجي، افراطي احمقانه فکر محصول دی.

د عراق بعثي جنرالانو چې د اسلامي امت کوم واک، ځواک بې ځایه وکارولو او له دوی څخه یې د دین په نوم د خپلو شومو اهدافو لپاره ګټه پورته کړه، موږ په ډاډ سره ویلی شو که دا مادي او بشري ځواک یو مدبر قیادت ته په لاس ورغلی وی، لرې نه وه چې د مسلمانانو د خلافت تنده یې ماته کړې وه او اسلامي خلافت یې پرې قایم کړی وی. خو دا چې دا مادي او بشري ځواک د یو خودخواه، متکبر، جاهل قیادت او بعثي جنرالانو په لاس کې دی، هغوی چې له مسلمانانو او په منځني ختیځ کې له القاعدې ډلې سره تاریخي عُقدې او دښمنی لري، دا قوت د مسلمانانو په ضد استعمالوي.

موږ ته لا هم ډیر وخت په کار دی چې په د عامو مسلمانانو په اذهانو کار وکړو تر څو هغوی په آینده کې د پیښیدونکي ګواښ په وړاندې ذهناً اماده وي. په داسې حال کې چې زموږ عام ولس دومره لوړ عزم نه لري چې د ډیرو مشکلاتو برداشت دې وکړای شي، چې ښه مثال یې همدا اوس د قندوز فتحه او په دې ښار د امریکایانو ړنده بمباري وه، هلته ولس د اسلامي امارت مجاهدینو ته تود هرکلی اوایو خو کله چې امریکایانو اوغوښتل چې عام ولس تنګ کړي او بالاخره همدا ولس مجبور شي له طالبانو اوغواړي چې ښار تخلیه کړي او بیرته په شا تګ وکړي چې همداسې وشول.

## دخوارجو د تنقیدونو څیړنه

په تیرو لیکنو کې له یوې اوږدې مقدمې وروسته د خوارجو دا تنقید پخپله ځواب شو چې اسلامي امارت ولې له ټولې نړۍ سره جنګ نه اعلانوي؟

اصلاً اسلامي امارت له کافرانو سره موادعه او مهادنه رواء ده، په داسې حال کې چې که د موضوع بل آړخ ته وکتل شي نو که له کوم هیواد سره مهادنه ونکړي هم، ځینو هیوادونو ته د دوی ډاډ او د هغوی سره مخکې له مخکې د ښو اړیکو غږ پورته کول یو تکتیک بللی شو، بلکې له دوی سره جنګ بندي کول یا دوی ته ډاډ ورکول صرف مطبوعاتي بڼه لري چې دا پخپل ذات کې یو تکتیک او د اَلْحَرْبُ خِدعةً مقتضی ده. که موږ د تمدد او توسع چیغې وهو په داسې حال کې چې زمیني حقائق بل ډول غوښتنه کوي او موږ په ځای د دې چې خپل حضور نورو ته پراخ کړو، ورځ تر بلې په موږ د حصار کړۍ تنګیږي او د کافرانو ائتلاف ورځ تر بلې زموږ په وړاندې غښتلی کیږي، نو دا مو له خپل رعیت سره خیانت او په جنګي امورو کې نا اهلي او ناپوهي په ډاګه کوي.

له پورته فقهي نصوصو د دواعشو دا تنقید په خپله ځواب شو، چې اسلامي امارت ولې له نورې نړۍ سره جنګ نه اعلانوي؟ او ولې کفري هیوادونو ته ډاډ ورکوي؟ ولې ځینې مشران په پاکستان کې اوسیږي؟

دواعش بل تنقید کوي او وایي چې اسلامي امارت د دوی د واکمنۍ پر مهال ولې په کفري هیوادونو کې سفارتونه خلاص کړي ؤ، دوی د بیلګې په ډول په ملګرو ملتونو کې د اسلامي امارت له استازي عبدالحکیم مجاهد یادونه کوي.

## سفير او سفارت په اسلام کې

سفير عربي کلمه ده، د فعيل په تُوْل (وزن) د قاصد، استازي، بيانونکي په معنی ده، چې سفارت بيا د هغه ځای نوم دی چې همدا سفير يې د ځان لپاره د استوګنې په توګه ټاکي.

د سفير او سفارت مشروعيت له نبوي سيرت څخه ښه واضح ده.

رسول الله صلى الله عليه وسلم ته قريشو ابورافع رض د سفير او قاصد په ډول راوليږلو، هغه اويل: والله اني لا أرجع اليهم خو رسول الله ورته اوفرمايل: اني لا أخيس بالعهد ولا أحبس البرد الخ (ابوداؤد ج۴ ص۶۲-۶۳،شرح معاني الاثارج۳ص۳۱۸،الحاکم ج۳ص۵۹۸،ابن حبان ص۳۹۳،)

همدا دول رسول الله صلى الله عليه وسلم کافرانو ته خپل استازي ليږلي دي، چې له هغې جملې څخه نجاشي ته سفير ليږل ؤ چې تر دا وخته مسلمان شوی نه ؤ(سيرة ابن هشام ج۲ص۶۰۶،طبقات ابن سعد ج۱ص۲۵۸ ،زادالمعاد ج۳ص۶۸۸،الجهاد والقتال في السياسة الشرعية ج۱ص۵۲۸ د. محمد خير هيکل)

امام ابن تيمية رح او امام ابن القيم رح د سفارت په اړه داسې وايي: کانتِ السّفارة مُنذ عهدِ النّبي صلي الله عليه وسلم تقوم لمدّةٍ موقتةٍ لإنجاز غرضٍ من الأغراض التي تتصل أساساً بالدعوةِ الإسلامية وتكاليفها وتحقيق مصلحةٍ تندرج تحت هذه الوظيفةِ وليس لذالك حدٌّ في الشرع (الحسبة في الإسلام ص ۱۶-۱۵،الطرق الحکمية في السياسة الشرعية ص۲۵۸)

رسول الله ص مصعب بن عُميرالهاشمي القرشي مدينې منورې ته وليږلو چې دا وخت لا د مدينې ټولو خلکو ايمان نه ؤ راوړی، ترڅو دوی ته د دين دعوت ورکړي. عمروبن امية الضمري يې د حبشې بادشا، نجاشي ته وروليږلو. دحية بن خليفة الکلبي يې قيصر ته ورو‌ليږلو. عبدالله بن حذافة السهمي يې کسرى ته ورو‌ليږلو. حاطب بن ابي بلتعة يې د سکندريې بادشاه مقوقس ته ورو‌ليږلو. شجاع بن وهب الاسدي يې حارث غاساني ته ورو‌ليږلو. سليط بن عمرو العامري يې د يمامې بادشاه هوذة بن علي الحنفي ته ورو‌ليږلو. جرير بن عبدالله البجلي يې ذي الکلاع اليمني ته ورو‌ليږلو.

(الطبقات الکبرى ج۱ص۲۵۸، السيرة النبوية ج۲ص۶۰۶،زاد المعاد ج۳ص۶۸۸،السيرة النبوية لابي الحسن الندوي ۲۴۴، امتاع الاسماع ج۱ص۳۰۷-۳۰۹،عيون الاثر ج۲ص۳۲۹)

د اسلامي دولت سفير په کافر هيواد کې لاندې وظيفې انجاموي.

.اسلام ته بلنه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل سفيران نورو هيوادونو ته د همدې مقصد لپاره ليږل.

.په اجنبي دولتونو کې د خپل هيواد تمثيلول (سير کبير مع شرح سرخسي ج۲ص۴۷۵،۴۷۱)

.د خپل هيواد پيغامونه رسول (سير كبير ج٢ ص٥١٥)

.د كافرانو سره تړونونه لاسليكول (سيركبير ج٢ ص٤٧٥)

.له دوی سره تړونونه فسخ كول (التراييب الادارية للكتاني ج١ ص١٩٦،١٩٥ سيركبير ج٢ ص٢٩٠)

.له كافرانو سره بنديان تبادله كول يا د هغوی فديه وركول (السيرالكبير ج٢ ص٤٧٨،٤٧٦ سيرة بين هشام ج٢ ص٦٥١،٦٥٠ المغازي للواقدي ج١ ص١٣٩)

.مشروع معلومات يو بل سره تبادله كول (سير كبير ج٢ ص٥١٥)

## اتـم فصل:

# د داعش ۱۱ شبهې او د هغې جوابونه

يادونه: د دواعشو هغه شبهات چې دوی يې خپلو اتباعو ته ورپيچکاري کوي، تر څو خپل باطل فکر په دوی اومني؛ ځينې يې هيڅ علمي آړخ نه لري خو ځينې يې علمي آړخ لري او هغوی چې له نبوي سيرته آګاه نه وي په اسانه پرې دوکه کيدلی شي. موږ دلته د دوی ۱۱ هغه شبهې ځوابوو چې علمي آړخ لري او په ځواب کې هم تر ډيره استناد په هغه کتابونو کؤو چې دوی ترې دليل راوړي. د بيلګې په ډول د علامه ابن تيمية او علامه ابن القيم له مصنَّفاتو.

## «اوله شبهه»

ابو محمد العدناني دوه ځايه په خپل صوتي بيان کې ويلي: زموږ منهج (تګلاره) د اده چې د لويې ګناه کؤونکي ته کافر نه وايو، نو په کوم دليل موږ ته دوی خوارج وايي؟

دلته هم ځينې دواعش وايي چې موږ خو ځکه خوارج نه يو چې لومړی خو خوارج هغه څوګ دي چې په شرعي امام يې خروج کړی وي او بل د خوارجو صفات لکه تحليق(سرونو خريبل) مرتکب د کبيرې کافر بلل، د سارق لاس له اوږې څخه پرې کول، په حائضه د لمونځ قضايي لازم بلل او داسې نور دي چې يو هم په موږ کې نشته.

ځواب: د خوارجو په هکله چې په احاديثو کې د تحلييق او تکفير على الکباير يا نور کوم علايم چې ذکر شوي دي، هغه په طريقه د حصر سره نه دي. ممکنه ده چې يو څوګ دې خارجي وي خو تحليق دې نه کوي. او د خوارجو تعريف دا نه دی چې په مسلمان حاکم دې يې خروج کړی وي. حافظ ابن حجر ليکي: سُموا بذالک لخروجهم عن الدين، وخروجهم على خيارالمسلمين.( دوی ته ځکه خوارج اويل شول چې دوی له دين وتلي دي او يا دا چې دوی د مسلمانانو د نيکانو له ټولي وتلي دي)«فتح الباري ج۱۲صـ۲۸۳»
امام نووي وايي: وسُموا خوارج لخروجهم على الجماعة، وقيل: لخروجهم عن طريق الجماعة، وقيل: لقوله صلى الله عليه وسلم: يخرج من ضئضئ هذا (دوی ته ځکه خوارج ويلی شي چې دوی د مسلمانانو د غټې ډلې څخه وتلي دي او يا ځکه چې دوی د مسلمانانو د جماعت له لارې وتلي دي يا دوی ته د دې حديث په وجه خوارج ويلی شي يخرج من ضئضئ هذا)«شرح النووي ج۷صـ۱۶۴»
ابن کثير ليکي: وقد تکلم الناس في کيفية قتال هولاء التتر من أی قبيل هو؟ فانهم يظهرون الاسلام، وليسوا بغاةً على الامام فانهم لم يکونوا في طاعته في وقتٍ ثم خالفوه! فقال الشيخ تقي الدين (أی ابن تيمية): هؤلاء من جنس الخوارج الذين خرجوا على علي و معاوية ورأوا أنهم احق بالأمر منهما وهؤلاء يزعمون انهم أحق باقامة الحق من المسلمين (د تتر. د خوارجو هغه ډله چې د ابن تيمية په وخت کې راڅرګند شول. د قتال په اړه خلک ډير نظرونه لري چې دوی له کومې قبيلې دي؟ دوی اسلام څرګندوي، دوی باغيان نه دي چې په امام يې خروج کړی وي ځکه دوی په طاعت د امام کې نه ؤ چې بيا ترې وتلي واي. ابن تيمية يې په ځواب کې اويل: دوی د هغه خوارجو له جنسه دي چې په علي او معاويه يې خروج کړی ؤ او دوی عقيده درلوده چې په امارت د دوی څخه ډير حقدار دي.«البداية والنهاية ج۱۴صـ۲۸»

او خارجيت لپاره د تكفير على ارتكاب الكباير عقيده ضروري نه ده. امام ابو الحسن الأشعري وايي: والخوارج الذين خرجوا على أمير المؤمنين علي بن أبي طالبٍ والصحابة – رضوان الله عليهم أجمعين- لم يكونوا ممن يعتقد القول بكفر مرتكب الكبائر كاالزنا والسرقة وشرب الخمر، وانما كفروا الصحابة بقبول التحكيم مع أنه ليس بذنبٍ أصلاً. وروسته ليكي: وأجمعوا أن كل كبيرة كفرٍ الا النجدات فانها لاتقول بذالك( هغه خوارج چې په علي او صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم يې خروج كړى ؤ دوى دا عقيده نه درلوده چې د لويې ګناه كوونكى كافر دى لكه زنا، غلا، شرابو چيښل بلكې دوى صحابه د تحكيم په قبلولو كافران بلل سره له دې چې هغه اصلاً ګناه نه ؤ. بل ځاى نوموړى وايي: دوى په دې اتفاق كړى چې د هرې لويې ګناه كوونكى كافر دى خو نجدات چې د ټولو خوارجو د سر ډله ده هغه دا عقيده نه لرى.«مقالات الاسلاميين ج١صـ٨٦»

امام ابن تيمية ليكي: الخوارج دينهم المعظّم مفارقة جماعة المسلمين و استحلال دمائهم و أموالهم.( د خوارج لوى دين دا دى چې دوى د مسلمانانو له ټولې جدا شوي دي او د دوى وينې او مالونه حلال بولي «مجموع الفتاوى ج١٣صـ٢٠٩؛»

بل ځاى ليكي: فانهم يستحلون دماء اهل القبلة لإعتقادهم أنهم مرتدون أكثر مما يستحلون من دماء الكفار الذين ليسوا مرتدين. (دوى د اهل قبله وينه حلاله بولي ځكه د دوى عقيده دا ده چې دا ټول مرتد شوي دي. د دوى په عقيده دا نور كافران مرتد نه دي ځكه د دوى وينه دومره زياته حلاله نه بولي. «فتاوى ابن تيمية ج٢٨صـ٤٩٧»

د سيرت امامانو ليكلي چې خوارج يواځې هغه چاته نه ويل كيږي چې په مشروع امام يې خروج كړى وي بلكې د تاريخ په اوږدو كې خوارجو دولتونه او امارتونه اعلان كړي دى. عبدالله بن وهب الراسبي هم د خلافت دعوى وكړه او خوارجو ورسره بيعتونه وكړل، شبيب الخارجي د عبدالملك په دوره د خلافت دعوى وكړه. عبدالاعلى بن سمح المعافري د منصور په دوره كې د خلافت اعلان وكړو. معز اسماعيل بن طغتكين د پنځمې هجري پيړۍ په پاي كې د خلافت دعوى وكړه.

## د اولې شبهې پاي

ابن أبي شيبة په خپل سند سره د عاصم بن شُميخ څخه روايت كوي چې فرمايل يې: سمعت أبا سعيد الخدريِّ يقول، ويداه هكذا يعني ترتعشان من الكِبر: لقتال الخوارج أحب اليَّ من قتال عُدَّتهم من اهل الشرک (ما له ابو سعيد خدري رض څخه اوريدلي دي چې لاسونه يې د ډير بوډاوالي له امله ريږديدل : ماته د دې خوارجو سره جنګ د مشركانو له جنګ څخه غوره دى) «مصنّف ابن أبي شيبة ج٧صـ٥٥٣»

حافظ ابن حجر له ابن هُبيرة څخه نقل كوي: وفي الحديث أن قتال الخوارج أولى من قتال المشركين والحكمة فيه أن في قتالهم حفظ رأس مال الاسلام، وفي قتال اهل الشرک طلب الربح وحفظ المال أولى (په حديث كې د خوارجو سره جنګ د مشركانو څخه غوره بلل شوى، چې حكمت پكې دا دى؛ د خوارجو سره په جنګ كې د اسلام د رأس المال (دتجارت سر) ساتنه ده، او د مشركانو سره په جنګ كې د ګټې طلب دى او د رأس المال ساتنه د ګټې له طلب كولو غوره ده) «فتح الباري ج١٢صـ٣٠١»

## «دويمه شبهه»

سوال دا دى چې څنګه په دوى د خوارجو حكم كيدلى شي په داسې حال كې چې دوى ډير عبادتګذار، د سنتو پابند، په عبادت حريص، په دوى كې داسې خلک په نسبت نورو جهادي ډلو ته ډير كم دي چې منكرات او ګناهونه كوي. دوى په جنګ كې ډير

زړور دي. ډېرو يې استشهادي عمليات تر سره کړل چې له قوي ايمان پرته امکان نه لري، نو آيا دا د تګلارې د صحت دليل نه دی؟

ځواب: لومړی خو دا خبره دلته زموږ د دواعشو په آړه سمه نه ده ځکه په دوی کې زياتره يې بد اخلاقه، ګمراه، په نشو روږدي، کسان دي؛ هوکې ځينې يې ربښتيا د سنتو پابند، عبادتګذار، او د خلافت غم اخيستي دي او که د عراق د خوارجو په آړه اويل شي نو دا خبره سمه ده خو..................

لومړی خو عبادتګذاري او د سنتو پابندي د تګلارې د صحت دليل نه شي کيدلی بلکې همدا عبادتګذاري د دوی هغه صفت دی چې په نبوي ص ارشاداتو کې يې يادونه شوي. د بخاري د اوږده حديث يوه ټوټه: يَحْقِرُ أَحَدُكُمْ صَلاتُه مَعَ صلاتِهم، وصِيامُه مَعَ صِيامِهم( تاسې به د دوی سره خپل لمونځونه او روژې ډېرې سپکې ګڼی ځکه د دوی لمونځ او روژه به په پوره طريقه وي) «صحيح البخاري ج۱صـ۲۰۰ حديث رقم ۳۶۱۰، صحيح مسلم جـ۲صـ۷۴۳ »

حافظ ابن حجر د دې حديث لاندې ليکي: كان يقال لهم القراء لشِدَّةِ اجتهادهم في التلاوة والعبادة الا انهم كانوا يتأَوَّلون القرآن على غير المراد منه، ويستبدون برأيهم و يتنطعون في الزهدِ والخشوع و غير ذالک (له دې امله چې دوی به په تلاوت او عبادت کې ډېر محنت کولو، دوی ته قاريان ويل کيدل. ليکن دوی د قران تأويل کولو بغير د مراد نه، او دوی به جبراً خپله رأيه په نورو منله، په خشوع او نورو عباداتو کې ځان ښودنه کوله) «فتح الباري جـ۱۲صـ۲۹۱»

او د خوارجو جرأت او زړورتيا هم دليل نه شي کيدلی ځکه د نهروان په جګړه خوارجو د حضرت علي رض د لښکر په وړاندې دومره په زړورتيا وجنګيدل چې هيڅ يو يې د جګړې له ميدانه ونه تښتيده. يوائې لس کسان هله ژوندي ونيول شول چې وسله يې تمامه شوه نور ټول مقبلين(مخامخ) غيرمدبرين (نه په شا) اوژل شول چې دا دوی د لوی جرات او زړورتيا ثبوت ؤ. حافظ ابن حجر ليکي: مع ما عُرف من شدَّةِ الخوارج في القتال وثباتهم واقدامهم على الموت، ومن تأمل ما ذُكر من اهل الاخبار من امورهم تحقق ذالک (سره له دې چې په جنګ کې د دوی سختي او ثابت قدمي او مرګ ته هرکلی ويل معلوم دي،څوک چې د تاريخ د علماؤ ويناوې اوګوري دا به ورته واضحه شي.«فتح الباري جـ۹صـ۴۸»

که زړورتيا دليل کيدلی نو د جاپان کاميکازيانو هم په نړيوال جنګ کې د ائتلاف په کشتيو د طيارو په توسط ځانمرګي بريدونه ترسره کړل، همدا ډول ويتناميانو د امريکايانو سره په جنګ کې داسې ميړانه ښکاره کړه چې امريکايان يې ګوته په غاښ کړل. دا مو له مشاهدې څخه يو څو مثالونه پيش کړل.

## دريمه شبهه

دواعش خپلو پلویانو ته القاء کوي، چې دوی ځکه په حق دي چې د دنیا ټول کفار په یوه سنګر کې د دوی په خلاف سره راټول شوي دي، په دنیا کې هیڅ داسې دولت نشته چې له دوی دې ملاتړ وکړي، ټول غلامان او باداران دوی په وړاندې په جنګ سره یوه خوله دي. د خلافت په وړاندې د دنیا د ټولو کافرانو ائتلاف د دې دلیل دی چې په حق دی.

*ځواب:* د دې سوال ساده جواب دا ده چې د حضرت علي رض په دور کې د هغه خوارجو چې په آړه یې صحیح نصوص موجود ؤ هم ډیر زیات دشمنان ؤ ټول کافران هم د دوی دشمنان ؤ او ټول مسلمان هم د دوی دشمنان ؤ خو نه دوی او د دوی مخالفینو دا دوی د حقیت دلیل وباله بلکې که تاریخ وکتل شي خوارج د خپلې پلیتې عقیدې له امله نه په مسلمانانو کې خواخوږی لري نه په کافرانو کې.

## *څلورمه شبهه*

داعش په عراق کې امریکا ماته کړه، امریکایان یې له عراقه وشړل او د دوی د قربانیو برکت ؤ چې په وړاندې یې د عراق ګوډاګې پوځ ونه شو دریداي، په سوریه کې یې د بشار د رژیم ملا ورماته کړه او د رِقه ښار لومړی ښار ؤ چې داعش فتحه کړ، په فرانسه کې یې بریدونه ترسره کړل، په امریکا کې یې بریدونه ترسره کړل، اسلامي امارت په څوارلس کاله مبارزه کې یو ولایت په بشپړ ډول ونشو نیولای برعکس داعش په ۶ کاله مبارزه کې نه یواځې دا چې امریکایان یې وشړل بلکې د دوی روزل شوی عراقي پوځ یې هم دړې وړې کړ، نو څنګه فکر کیدلی شي چې د داسې غښتلي عقیدې او غښتلي عزم او پراخو فتوحاتو واله خلک دې خوارج اوبلل شي؟

*ځواب:* لومړی خو د جنګ په ډګر کې انتصارات او کامیابی دلیل نه شي جوړیدلی. د زمکې په مخ ډیرو قومونو په جنګونو کې فتحې او برلاسي کټلي دي. دویم دا چې هغوی چې د عراق حالت له نږدې څاري، ورته واضحه ده چې هلته رښتیا داعش دا دومره مناطق په زور ونیوې که د امریکایي پلان لاندې دا سیمې دوی ته تخلیه کړل شوې؟ موږ دا نه وایو چې داعش کټ مټ امریکایي پروژه ده، بلکې امریکایان چې د نړی شیطان صفته انسانان دي، کله یې چې د داعش فکري انحراف او د القاعدې سره د دوی ټکر درک کړ، ویې غوښتل چې د داعش د همدې فکري انحراف څخه دوی ګټه پورته کړي او د القاعدې څخه خپل غچ د دوی په واسطه واخلي.

په ۲۰۰۶م کال چې کله زرقاوي شهید کړل شو سي آی اې یو پلاوی وګوماره ترڅو له زرقاوي وروسته د عراق د حالاتو راپور وړاندې کړي. سي آی اې داسې شواهد او اسناد اومندل چې ښیي، له زرقاوي ورسته ټاکل شوی مشر د بن لادن اوامر نه مني، او له زرقاوي وروسته د امیر انتخاب هم د بن لادن له خوښې پرته شوی. امریکایانو موقع غنیمت وګڼله او په عراق کې د القاعدې څخه د خپلې ماتې د غچ اخیستو په هدف یې د داعش لپاره په زمینه سازی کار پیل کړ. په لومړي قدم کې امریکایان په بشپړ ډول له عراقه اوتل وروسته په عراق کې د هغو قیادتونه په نښه کول شروع شول چې په القاعدې پورې یې تړاؤ درلود او د بن لادن د افغانستان د محاذونو ملګري ؤ. ترڅنګ یې امریکایانو د هغو بعثي جنرالانو په خوشي کولو هم پیل وکړو چې باور کیده له خلاصیده وروسته به له داعش سره یوځای کیږي.

امریکایانو نوري المالکي ته چې د دوی مخلص غلام ؤ امر وکړ چې په عراق کې داعش ته مناطق تخلیه کړي. نوري المالکي په موصل کې د ۳۰ زره کسیزې پلې لوا قومندان ته امر ورکړ تر څو موصل تخلیه کړي. هماغه ؤ چې له موصل څخه عراقي ځواکونه بغیر له مقاومته وؤتل په داسې حال کې چې د موصل په نیونه کې یو عراقي عسکر هم د داعش په لاس نه دی اسیر شوی.

کله چې د عراق پرلمان د موصل د ۳۰ زره کسیزې لوا قومندان احضار کړ، هغه په زغرده اویل چې د لومړي وزیر دفتر ورته په مستقیمه قوماندو امر کړی ؤ، چې د داعش سره مقاومت ونکړي او د عراق دویم لوی ښار موصل پریږدي، چې له داسې ډیرو اسرارو څخه رابرټ ګیټس پخپل کتاب کې پرده پورته کړې ده.

که موصل د یوه پلان له مخې داعش ته په لوی لاس نه وي سپارل شوی، ولې داعش په عراق کې پرمختګ نه شي کولی؟ او ولې یې د رمادي ښار له لاسه اوته؟ ولې یې په عراق کې ورځ تر بلې سیمې له لاسه وځي؟ طالبانو له امریکایانو سره څوارلس کاله په جنګ تیر کړل، طالبان او داعش د امریکایي هوایي ځواک په مقابل کې هیڅ دفاعي سیستم نه لري، همدا دلیل ؤ چې کندز یې له فتحې وروسته ونه ساتل شو. نو دوی څنګه په زرګونه کیلو متره ځمکه ساتي؟ آیا په معمایي ډول اومنو چې بس دا خو د الله نصرت دی؟ که د الله نصرت داسې بې اعداده او بې اسبابو مطلق په عبادت او د ایمان په قوت راتلی نو له رسول الله ص خو لوی عابد او د قوي ایمان او عزم څښتن هیڅوک نه ؤ ولې ورته الله تعالی د وأعدوا لهم امر کوي؟ که دوی وایي چې موږ اعداد کړی نو کوم دی هوایي اعداد؟ که دوی وایي چې په موږ د ائتلاف طیارې بمبارد کوي خو موږ یې صرف په چوف راغورځوو نو وښایئ ستاسو ساحره میډیا خو له ژوندیو انسانانو څخه شهیدان جوړوي او د مسلمانانو د تغریر لپاره یې په ټولنیزو پاڼو نشروي.

د ائتلاف طیارو د ۲۰۱۵م کال ترپایه په عراق او شام کې ۱۲۴۹۹ بریدونه کړي چې یواځې ۷۲۴ یې په عراق نور ټول په شام کې دي. چې د دې ټولو له جملې یواځې ۴۹۳ یې په عراق کې ۶۷۸ یې په سوریه کې د داعش په هدفونو ترسره شوي نور ټول یا په ملکي وګړو شوي یا پکې د جبهة النصرة مرکزونه هدف ګرځیدلي دي.

په عراق او سوریه کې د ائتلاف په سلو کې یواځې ۸ فیصده بریدونو د داعش په ضد دي نور ټول د القاعدې مجاهدین په نښه کیږي. هغه بریدونه چې په داعش ترسره کیږي هم په دې هدف چې صلیبي ائتلاف د داعش دومره پرمختګ هم نه غواړي چې په نوره نړۍ کې د دوی ګټې وګواښي ولې دومره کمزوري کول یې هم نه غواړي چې القاعده یا د نړۍ په لر او بر کې نړړ مجاهدین مصروف ونه شي ساتلی.

## د څلورمې شبهې د ځواب پای

ځینې خلکو د الله د رسول ص دا وینا چې ( یقتلون اهل الاسلام ویدعون اهل الاوثان) داسې فهم کړې چې ګڼې خوارج اصلا د کافرانو سره جنګ نه کوي، خو څوک چې د قرآن او حدیثو د اسلوب سره آشنا وي، دا شبهه په اسانه درک کولی شي. د لوط

عليه السلام د قوم په آړه الله تعالی فرمايي: أتأتون الذكران من العالمين وتذرون ماخلق لكم ربكم الآية...سورة الشعراء ۱۶۶.۱۶۵ {آيا تاسې نرانو ته په بدکارۍ سره راځي او هغه څه پريږدی چې تاسې ته الله پيدا کړي دي. ښځې} داسې خو نه وه چې د لوط قوم به اصلا له ښځو سره جماع نه کوله خو الله تعالی دلته د اغلب حالت لپاره د تذرون کلمه کارولې ده. د تاريخ په اوږدو کې خوارجو ډيرځله د کافرانو سره سخت سخت جنګونه کړي دي خو د دوی د جنګونو نِکايت او ضرر مسلمانانو ته ډير زيات دی په نسبت کافرانو ته. امام ابن تيمية ليکي: وصاروا يقاتلون إخوانهم المؤمنين بنوعٍ مما يقاتلون المشركون، وربما رأوا قتال المسلمين آكد{ دوی همغه ډول چې کافران وژني، مسلمانان هم په يو ډول وژني بلکې دوی د مسلمانانو سره جنګ مهم بولي} مجموع الفتاوي ج۶ص۳۶۰

## پنځمه شبهه

دواعش د مسلمانانو د تغرير لپاره دا شبهه کاروي: موږ چې کله په کومه ځمکه واک تينګ کړو لومړی پکې حدود نافذوو، شرعي محاکم قايموو، مجرمين، غله، يا نور مفسدين په شرعي حکم محکوموو، د شريعت تطبيق، د حدودو نفاذ، تحاکم الی الله، رد د تحاکم محاکمو وضعيه ؤ ته د منهج د صحت دليل دی.

ځواب: د دې شبهې په آړه يو څو خبرې مهمې دي.

(الف) له لويه سره که د حدودو نفاذ او د شرعي محاکمو قيام د منهج د صحت دليل واي نو د سعودي شاهي دولت هم حدود نافذ کړي هم يې شرعي محاکم قايم کړي، چې دا خبره ټولې دنيا ته واضحه ده. خو د دې باوجود همدا دواعش د سعودي دولت کافر بولي او په وړاندې يې جهاد فرض بولي. خو که دواعش وايي چې، د سعودي دولت د کفر لپاره موږ نور کافي دلايل په لاس کې لرو، موږ وايو چې موږ هم ستاسو د خارجيت لپاره کافي دلايل په لاس کې لرو، نو لکه څنګه چې يواځې د حدودو قايمول، د شرعي محاکمو قيام د دوی لپاره دليل نشي جوړيدای، ستاسو لپاره هم دليل نشي جوړيدای.

(با) د داعش محاکم د اهليت په اعتبار له ډيرو ستونزو سره مخ دي. د دوی ډيری قاضيان او شرعيان په علمي لحاظ د قضاء اهليت نه لري بلکې د دوی د محاکمو ډير حکمونه د دوی د قاضيانو د جهالت ښکاره دليل دی چې بيلکې يې اعدام په ذبحه نافذول، د غله لاس په ساطول پرې کول، په سختو تعذيبونو له متهم څخه اعتراف اخيستل، په شکوکو او شبهاتو خلک تکفيرول او بيا يې د مرګ حکم صادرول، د زنا حکم په متهمينو اجراء کول او د تبليغاتو په موخه د هغې ويډيو کول. سره له دې چې په ويډيو کې شهود نه معلوميږي او هيڅ پته نه لګيږي چې د زنا حد د چا په ګواهۍ نافذ شوی؟

په داسې حال کې چې اعدام بالذبح د امت د عالمانو په فتوی ناروا دی: القتل ذبحاً طريقةٌ لم تُعهد عن المسلمين منذ عهد النبي صلی الله عليه وسلم وصحابته و من بعدهم من اهل العلم والقضاء؛ فنسبة هذالامر الی السنة منكرٌ من القول وادعاءٌ بلا علم. وانما عُرفت هذه الطريقة في القتل عن الخوارج الاولين كما جاء في كتب التاريخ والسير أنهم ذبحوا عبدالله بن خباب

كما تُذبح الشاة ثم قربوا أم ولده فبقروها عما في بطنها فهي سنةٌ خارجيةٌ لا سنةٌ نبوية (د ذبحې په طريقه د يو چا وژل د مسلمانانو تر مينځ د رسول الله ص او صحابوؤ له زمانې او وروسته د علم او قضاء د خلکو څخه نه ده ثابته. دا کار سنتو ته منسوبول بده خبره ده او له علم پرته دعوه ده. د وژلو دا طريقه له لومړنيو خوارجو رامعلومه شوي ده، لکه د تاريخ او سيرت په کتابونو کې دي چې دوی مشهور صحابي عبدالله بن خباب داسې ذبح کړ لکه پسه چې ذبح کولی شي، بيا يې د هغه ښځه راوسته او د هغې خيټه يې څيرې کړه او هغه ماشوم او مور يې ذبح کړل، نو دا د خوارجو سنت دي نه نبوي ص سنت .

(فتوى هيئة العلماء islamicsham.org/fatawa/1990)

حافظ ابن کثير وايي: فهم اول من سنَّ الذبح في القتل (دوی لومړی هغه څوک ؤ،چې په وژلو کې يې د ذبحې طريقه جاري کړه)

نو که دواعشو ته چيرته د ذبحې په اړه کوم ضعيف حديث هم معلوم وي رادې وړي، او د (جئناكم بالذبح) حديث خو لومړی په سند کې مقال دی او دويم دا چې آيا د الله رسول ص د قريشو سره دا عمل چيرته ترسره هم کړ؟ په هيڅ حديث سره څوک نشي ثابتولی چې رسول الله ص دې د مکې د فتحې په ورځ يو کافر هم ذبح کړی وي، او که (فاضربوا فوق الأعناق )آيت او (ضرب الرقاب و شد الوثاق) حديث په ذبح حمل کوي نو دا به يې له عربي علومو څخه د جهالت په سبب وي.

بله هغه فاحشه غلطي چې د داعش جاهل قاضيان يې په حدودو کې کوي هغه د غله لاس په ساطول پرې کول دي، په داسې حال کې چې لاس بايد له مرونده په چاړه پرې کړل شي ترڅو د ځنګلې هډوکې ته زيان ونه رسيږي خو په ساطول سره لاس پرې کولو سره طبعي ده چې د ځنګلې هډوکی زيانمنيږي چې له مشروع حد څخه تجاوز او ظلم دی.

له متهم څخه په زور اعتراف اخيستل، د وهنو او شکنجو له لارې متهم مجبورول، د اسلام قانون خو څه چې د انګريز په قانون کې هم نشته، خو د عراق کمونيستې جنرالانو بيا له بنديانو سره هغه وحشتونه تر سره کوي چې کوتې يې له ليکلو شرميږي.

د حد د جاري کولو په وخت کې له محدود څخه ويډيو کول هيڅ شرعي اصل نه لري، د (وليشهدْ عذابهما طائفة من المؤمنين )آيت څخه د ويډيو جواز نه شي فهميدلی، ځکه په ويډيو کې د محدود تفضيح(رسوايي) کولی شي په داسې حال کې چې جلد او رجم د تفضيح لپاره ناسخ دی، چې د علم په خاوندانو دا پټه نه ده.

د امت جمهور علماء په دې آند دي چې هغه حدود چې د آدميانو په حقونو پورې تړلي نه وي، لکه د زنا حد او د غلا حد، د کافرانو سره د جنګ په وخت کې د هغې نافذول رواء نه دي، امام ترمذي په خپل سند سره له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه نقل کوي: لا تُقطع الأيدي في الغزو( د کافرانو سره د جنګ په وخت کې به د غل لاسونه نه شي پرې کولی) سنن ترمذي ج ۲ ص۱۰۵ کتاب الحدود باب ماجاء أن لا تُقطع الأيدي في الغزو. لاندې ترې امام ترمذي ليکي: والعمل على هذا عند بعض أهل العلم منهم: الأوزاعي: لا يرون أن يقام الحد في الغزو بحضرة العدو مخافة أن يلحق من يقام عليه الحد بالعدو، فإذا

خرج الإمام من أرض الحرب ورجع إلى دار الإسلام أقام الحد على من أصابه كذلك قال الأوزاعي. (پخوانی حواله).

سعيد بن منصور په خپل سند سره له حضرت عمر رض څخه نقل کوي چې هغه رض ټولو عاملانو ته خط وليږلو چې پکې ليکلي ؤ: أن لا يجلدن أمير جيش ولا سرية رجلا من المسلمين حدا وهو غاز حتى يقطع الدرب قافلا لئلا تحمله حمية الشيطان فيلحق بالكفار(سنن سعيد بن منصور جـ۲ صـ۲۳۵ حديث رقم۲۵۰۰).

د قادسيې په جنګ کې سعد بن أبي وقاص ابومحجن د شرابو په چيښلو صرف بندي کړ او حد يې پرې جاري نه کړ. علامه ابن القيم د دې اثر لاندې ليکي: فهذا حد من حدود الله تعالى، وقد نهى عن إقامته في الغزو خشية أن يترتب عليه ما هو أبغض إلى الله من تعطيله أو تأخيره من لحوق صاحبه باالمشركين حمية وغضبا كما قاله عمر وأبو الدرداء وحذيفة وغيرهم، وقد نص أحمد وإسحاق بن راهويه والأوزاعي وغيرهم من علماء الإسلام على أن الحدود لا تقام في أرض العدو، وذكرها أبو القاسم الخرقي في مختصره فقال: لا يقام الحد على مسلم في أرض العدو، وقد «أتى بشر بن أرطاة برجل من الغزاة قد سرق مجنه فقال: لولا أني سمعت رسول الله - صلى الله عليه وسلم - يقول: لا تقطع الأيدي في الغزو لقطعت يدك» ، رواه أبو داود، وقال أبو محمد المقدسي: وهو إجماع الصحابة ( إعلام الموقعين جـ۳صـ۱۳)

د دواعشو د قاضيانو بل جهالت دا دی چې دوی د سوريې په داسې سيمو کې هم له خلکو لاسونه پرې کړي چې هلته له لوږې خلک مري په داسې حال کې د أمت علماء په دې متفق دي چې په ايام المجاعة او ايام القحط ( دلوږې او قحطۍ په ورځو) کې د غلا حد نه شي نافذولی.

د ماعز حديث چې د حديثو ټولو کتابونو رانقل کړی، کله چې هغه د کانو له درده ډير په تکليف شو نو منډه يې کړه، رسول المعترف يرجع عن اعترافه) نو که يو الله ص اوفرمايل: هلا تركتموه؟ ولې مو نه پريښودو؟ امام دارمي باب منعقد کړی (باب څوک په ځان د يو حد اعتراف وکړي خو د حد په مينځ کې يا صراحةً يا اشارةً له خپل اعتراف وګرځي نو باقي حد به نشي پرې جاري کيدلی، خو دا اصل د داعش قاضيان نه پيژني.

داعشي جنګيالي په يوه ويډيو کې ليدل کيږي چې د جبهة النصرة يو غړی په داسې حال کې ذبح کوي چې هغه په مکرر ډول د ماسپښين د لمانځه لپاره د وخت غوښتنه کوي. نو که اومنو چې د جبهة النصرة دا غړی مرتد شوی نو د ماسپښين لمانځه لپاره د وخت غوښتنه د ده توبه نه ده؟

## شپږمه شبهه

عدناني په خپل غږيز پيغام کې چې عنوان يې دی ( هذا وعدالله ) داسې وايي: موږ ټولو مسلمانانو ته خبرداری ورکوو، چې د خلافت د اعلان سره سم په ټولو مسلمانانو د خليفه ابراهيم (الله دې وساتي) بيعت او کومک واجب دی او ټول إمارتونه، ډلې، ولايتونه، تنظيمونه باطل شول.

دوی د (من مات ولیس في عنقه الخ) حدیث څخه استدلال کوي چې د خلافت په اعلان سره په ښځه او نر بیعت فرض شو. هغوی چې بیعت نه کوي د أمت د لوی ارمان، خلافت سره جفا کوي او د شهیدانو د ارمانونو سره خیانت کوي، ځکه هغوی د خلافت لپاره وینې ورکړي وې.

*ځواب*: د امت عالمانو د خلافت مسائل، احکام، شرائط په خورا تفصیل بیان کړي خو د دواعشو مفتیان د خپل خلافت د مشروعیت لپاره په سستو، مرجوحو، متروکو اقوالو استدلال کوي. د بیلګې په ډول: ابو همام الأثري په خپل کتاب (مد الأیادي لبیعة البغدادي) کې د اهل الحل والعقد په آړه د الأحکام السلطانیة للماوردي هغه مرجوح او ضعیف قول راخیستی چې وایي: خلافت د اهل الحل والعقد د پنځو او حتی د اهل الحل والعقد د یو کس لخوا هم منعقد کیدلی شي. په داسې حال کې چې د جمهورو رأیه دا ده چې : لاتنعقد الا بجمهور اهل الحل والعقد من کل بلدٍ (الأحکام السلطانیة للماوردي ج١ ص٢٣)

علامه ابن تیمیة لیکي: فانه لا یشترط في الخلافة الا اتفاق اهل الشوکة والجمهور الذین یُقام بهم الامر بحیث یُمکن أن تُقام بهم مقاصد الامامة. د خلافت لپاره د جمهورو او د قوت واله خلکو موافقه لازمه ده، هغه خلک چې د قدرت واګې په لاس کې لري، د دې لپاره چې د امامت هدف لاس ته راؤړل شي {منهاج السنة النبویة ج٨ص٣٣٦}

حضرت عمر رض فرمایي: من بایع رجلاً عن غیر مشورة من المسلمین فلا یُبایع هو ولا الذي بایعه، تغرّةً أن یُقتلا. قال ابن حجر رحمه الله: ای أن من فعل ذالک فقد غرّر بنفسه و بصاحبه و عرّضهما للقتل. څوک چې د مسلمانانو له مشورې پرته له یو سړي سره بیعت وکړي نو هغه او ځان په دوکه کې آچوي، ځکه دواړه ځان وژلو ته وړاندې کوي او دوی باید اوژل شي{ فتح الباري ج١٢ص١٥٠}

خو د عراقي خوارجو بد صفت دا دی چې تنزیل د نصوصو له خپل ځای پرته په بل ځای کې کوي، له دې څوک منکریدای شي، چې د خلافت قیام په مسلمانانو فرض نه دی؟ له دې څوک منکریدای شي، چې د شرعي خلیفه سره بیعت فرض نه دی؟ آیا د داسې دولت له قیام چې د الله په کتاب او د رسول په سنتو حکم کوي څوک منکریدای شي؟ دا خو مسلَّمات (د ټولو لخوا منل شوي) دي چې د خلافت اعاده او اقامه په مسلمانانو فرض ده، د خلیفه سره بیعت فرض ده، د اهل بیتو تعظیم او وقار په مسلمانانو لازم ده، خو سوال دا ده چې آیا دا مکوّنات په تاسې کې شته؟

امام مسلم په خپل سند سره حدیث نقل کوي، چې رسول الله ص اوفرمایل: ومن مات ولیس في عُنقه بیعة، مات میتة جاهلیة. څوک چې په داسې حال کې مړ شي چې په غاړه کې د شرعي امیر بیعت نه لري، نو د جاهلیت په مرګ مړ شو. (مسلم ج۲ کتاب الامارة)

دواعش له دې حدیث څخه د خپل خلیفه لپاره د بیعت په وجوب دلیل نیسي، حال دا چې دا تحریف دی ځکه هغه امام او هغه خلیفه چې بیعت ورسره واجب دی بغدادي نه دی.

خلال له احمد بن حنبل رح روايت کوي: أن احمد بن حنبل سُئل عن حديث النبي صلی الله عليه وسلم من مات وليس له امام مات ميتةً جاهليةً. ما معناه؟ قال أبو عبدالله: تدري ما الامام؟ الامام الذي يجمع المسلمون عليه، کلهم يقول: هذا امام، فهذا معناه {له امام احمد څخه د پورته حديث په آړه پوښتنه وشوه، نوموړي په ځواب کې اويل: ته پوهيږې چې امام چاته وايي؟ امام هغه څوک دی چې ټول مسلمانان پرې راټول وي، او ټول وايي چې دا امام دی، دا يې معنی ده} (السنة لأبي بکر الخلال ج١ ص٨٠)

امام نووي ليکي: الأصح أن المعتبر بيعة اهل الحل والعقد من العلماء والرؤساء وسائر وجوه الناس الذين يتيسر حضورهم. صيي قول دا دي چې د اهل الحل والعقد د عالمانو او مشرانو او د ټولو خلکو له مشرانو څخه، هغوی چې حاضريدل يې ممکن وي. { روضة الطالبين ج١٠ ص٤٣}

عجيبه دا ده چې همدا د امام نووي قول د داعش مفتيان د خپلې دعوی لپاره د دليل په ډول پيش کوي، او وايي چې په عراق کې چې د څومره مجاهدينو، علماؤ حاضريدل ممکن ؤ د بغدادي بيعت ته حاضر شول او هغه مجاهدين قيادتونه چې په نورو ملکونو کې ؤ حضور يې ممکمن نه ؤ نو له دوی سره سلا مشوره هم شرط نه وه، څومره لوی تحريف؟ د نړی له ګوټ ګوټ څخه د غلو او اختطافکرو څخه بيعتونو راټولول ممکن دي خو د جهاد د امامانو څخه د خلافت په اهم کار کې مشوره اخيستل نه ؤ ممکن؟

امام شاطبي رح ليکي: ومنها تحريف الأدلة عن مواضعها بان يرد الدليل علی مناطٍ فيصرف عن ذالک المناط الی امرٍ آخر موهماً أن المناطين واحدٌ، وهو من خفيات تحريف الکلم عن مواضعه، والعياذ بالله. او بل د دلايلو آړول دي له خپل ځاي څخه، چې يو دليل د يوې حادثې لپاره راؤړل شوی وي خو هغه له خپل اصلي حادثې واړول شي او داسې توهم واچول شي، چې ګواکې دواړه حادثې يوه ده، دا هم له قرآني مذکور تحريف څخه دی، له الله پناه غواړو.{الاعتصام للشاطبي ج١ ص٢٤٩}

موږ خلافت هم منو، موږ د شرعي خليفه سره بيعت واجب هم بولو، خو هغه خلافت چې د عراق خوارجو اعلان کړی، شرعي نه دی، او نه بغدادي شرعي خليفه دی، او نه له ده سره بيعت رواء دی ځکه دا د مسلمانانو په وينو توېولو باندې بيعت دی، چې حرام دی.

عدناني په خپل غږيز پيغام کې د خلافت د مشروعيت لپاره د منعي دلايلو وروسته ويلي چې که اصلاً د اهل الحل والعقد بيعت موجود نه وي هم. أخذناها بحدالسيف قهراً، فالجماعة تغلبوا وحکموا بشرع الله فلماذا لانبايعهم. بغدادي ځکه خليفه او بيعت يې واجب دی چې هغه دا خلافت د تورې په زور نيولی دی.

دوی يو وار بغدادي د اهل الحل والعقد له لورې ټاکل شوی بولي بل خوا يې متغِلب بولي چې د دواړو تر مينځ په احکامو او مفاهيمو کې ډير تفاوت دی. بلکې متغلب؛ علماء فاسق بولي. علامه ابن حجر رح ليکي: المتغلب فاسقٌ معاقَبٌ، لايستحق أن يبشر ولايُؤمر بالاحسان فيما تغلب عليه، بل انما يستحق الزجر والمقت والاعلام بقبيح أفعاله و فساد أحواله. متغلب فاسق او د سزا لايق ده، هغه د زيري لايق نه دی او د ده په مغلوبه سيمه کې به د ده سره د نيکۍ کولو امر نشي کولی، بلکې نوموړی

د رټولو او غوصې وړ دی، او خلک باید د ده په قبیحو عملونو خبر کړل شي .{ الصواعق المحرقة على اهل الضلال والزندقة جـ۲ صـ۶۲۷}

علامه جویني متغلب ته په زمکه فساد کونکی ویلي دی{غیاث الامم جـ۱ صـ۳۲۶} امام ماوردي د متغلب حاکم د اطاعت لپاره ۷ شرطونه بیان کړي چې یو یې هم په بغدادي کې وجود نه لري{ الاحکام السلطانیة للماوردي جـ۱ صـ۶۶}

اوس نو بغدادي متغلب حاکم شو نه خلیفه، ځکه خلافت علی منهاج النبوة خو د تغلب او زور له لارې نه شي راتلای، بله دا چې بغدادي که متغلب دی خو د عراق او سوریې په یوڅو ښارونو به متغلب وي نه د دنیا په ټولو مسلمانانو، په داسې حال کې چې نوموړی ځان د ټولو مسلمانانو مشر بولي.

د اسلامي خلافت د قیام اهم هدف د مسلمانانو د مال،نفس، دین، عِرض ساتنه ده خو د عراق خلافت خو نه د مسلمانانو مال نه نفس نه عزت وساتلو بلکې دوی په دې جرم چې د دوی خلیفه سره یې بیعت ونه کړ، بشپړ قبیلي له منځه یوړې او قتل عام یې کړې چې ښه بیلګه یې د شعیطات د قبیلې عام وژنه وه.

## «اوومه شبهه»

اسلامي دولت د ټولو کافرانو په وړاندې واضح دریځ لري، په وطنیت او قومیت باور نه لري، د سایکس-بیکو حدود ردوي، په داسې حال کې چې طالبان یا نور اسلامي خوځښتونه په قومیت او وطنیت او د سایکس-بیکو په حدودو باور لري، چې د کافرانو په فیصلو باور کول دي او کفر دی.

<u>ځواب:</u>په ۱۹۱۶م کال د بریطانوي دیپلومات مارک سایکس او فرنسوي دیپلومات جورج پیکوټ تر منځ د عثمانی خلافت له راپرځولو وروسته، یو تړون رامینځ ته شو چې په مټ یې ټول منځنی ختیځ د بریطانیانو او فرانسویانو تر منځ په وړو وړو دولتونو اویشل شو چې هماغه حدود تر اوسه په خپل حال دي، او د سایکس-پیکو حدودو په نوم یې یادونه کیږي.

دواعش د سایکس-پیکو حدودو ته ژمنتیا کفر بولي په داسې حال کې چې دوی لومړی خپل دولت په – الدولة الاسلامیة في العراق- ونوماوه، وروسته دا نوم –الدولة الاسلامیة فی العراق والشام- ته واړول شو. سوال دا دی چې آیا دا عراق او شام هماغه د سایکس-پیکو حدود نه دي؟ چې تاسې لومړی خپل دولت تر عراقه بیا تر شام پورې وغځاوه؟ که دا عمل کفر وي خو بیا د دې کفر لومړی تاسې مرتکب شوي یی، او که تاسې له دې کفر توبه ایستلي وي نو اعلان کړی خپله توبه او له دې وروسته –الدولة الاسلامیة في العراق والشام- مه لیکئ.

موږ په پولو باور نه لرو او دا پولې په موږ تپل شوي دي چې فعلا يې موږ د له منځه وړلو توان نه لرو او د خوليې په لاپو شاپو الله تعالی نه یو مکلف کړي او نه د خولې لاپې شاپې د نبوي ص له سیرت سره اړخ لګوي. همدا ډول موږ په قوم او وطن باور نه لرو خو ساحوي مجبوریتونو موږ اړ کړي یو چې د خپلې مبارزې لپاره د حدودو د ټاکلو غږ پورته کړو.

### «اتمه شبهه»

د دواعشو ناخبره مفتیان خپلو اتباعو ته د مسلمانانو د وینو د تویولو لپاره دلیل وايي: چې د اصلي کافرانو وړاندې باید د دوی په اصطلاح له مرتدینو سره جنګ وشي، او د أمت اجماع په دلیل کې راؤړي چې: قتال المرتد أولى من الكافر الأصلي.

*ځواب:* د اصولو د قانون له مخې چې مَبني په فاسد، فاسد وي. دوی دا دلیل په یوې بلې فاسدې نظریې بنا کوي. هغه یو وار د مسلمانانو په شبهاتو او ظنونو تکفیر دی چې وروسته د همدې مسلمانانو وژل له کافرانو وړاندې بولي، او دلیل وړاندې کوي چې د مرتد وژل له اصلي کافر څخه وړاندې دي.

موږ د تکفیر اسباب، شرایط، ظوابط، احکام وړاندې بیان کړي خو دلته د دوی د دې شبهې په ځواب کې په لنډو د امام ابن تیمیة عبارت نقل کؤو، نوموړی وایی: فإنّهم يستحلّونَ دِماء أهل القِبلةِ لإعتقادهم أنّهم مُرتدون، أكثر ممّا يستحلّون من دماء الكفار – دوی د اهل قبله ؤ وینې په دې دلیل د ځان لپاره حلالې بولې چې دا مرتدین دي، او د دوی وژل له کافرانو وړاندې دي{مجموع الفتاوى ج۲۸ ص۴۹۷}

### «نهمه شبهه»

دواعش وايي: که اومنو چې زموږ خلافت شرعي نه دی، بیا هم زموږ په وړاندې جګړه د فتنې جنګ دی چې ترې اعتزال او ګوشه کیدل واجب دي.

*ځواب:* څومره ساده منطق؟ زما په وړاندې جنګ د فتنې جنګ دی او په مسلمانانو د دې جنګ څخه اعتزال لازم دی! نو جنګ خو د طرفینو په شتون کې کیږي، څومره له عقل لرې خبره ده چې یو وار دې جنګ هم د فتنې شي بیا دې یو طرف ځان په حقه اوبولي؟

### «لسمه شبهه»

که فرضاً دوی خوارج هم شي، نو د دوی په صفونو کې خو داسې خلک هم شته چې دوکه کړل شوي، یا یې نیت د خیر دی نو څنګه به په مطلق ډول د ټولو مرګ رواء شي؟

*ځواب:* کله چې د دوی ډله د خوارجو شوه او پر وړاندې یې جهاد فرض شو، نو دا حکم بیا ټولو افرادو ته شامل دی، امام نووي د بیداء د حدیث لاندې لیکي: وفيه أن من كثّر سواد قومٍ، جرى عليه حكمهم في ظاهر عقوبات الدنيا. له دې حدیث

معلومه شوه چې خوګ چې د چا ډله زياته کړي، په دنياوي عقوباتو کې د همدې ډلې حکم پرې جاري کېږي.{شرح النووي ج۱۸ صـ۷}

«يولسمه شبهه»

اسلامي دولت په طاغوت کافر دی په داسې حال کې چې اوسني ډېر جهادي حرکات په طاغوت کافر نه دي بلکې له طاغوت سره موالاة او دوستي کوي.

ځواب: دا شبهه بيا تکفير ته ورل کيږي ځکه دواعش هغه چا ته هم طاغوت وايي چې ټول عمر يې په جهاد، هجرت، نصرت کې صرف کړی وي نو دلته بيا د تکفير بلا مکفر صورت دی چې موږ وړاندې د تکفير په برخه کې پرې بحث کړی ؤ.

# نهم فصل:

# د داعش جنايات

څنګه چې په نبوي احاديثو کې د خوارجو په صفاتو کې يادونه وشوه چې دوی هغه څه وايي چې کوي يې نه، برّاق او ځليدونکي شعارونه کاروي، ولې په عمل کې بيا بل څه کوي. په عراق او شام کې د دوی جنايات او د دوی د ميډيا او ويډيوګانو کاذب شعارات سړي ته دا حديث وربه يادوي: يُحسنون القِيل و يُسيئون الفعل.

د داعش وحشتونه جنايات له شميرنې وتلي خو موږ يې يو څو نمونې ستاسو مخې تهږدو.

## د شیخ ابوخالد السوري پې رحمانه وژنه

د داعش د جرایمو په اوږده لیست کې د ابوخالد وژنه ترټولو شرمؤونکي او د دوی په مخونو لوی داغ دی ځکه ابوخالد د شیخ عزام، بن لادن او نورو د جهاد د مشهورو امامانو نږدې ملګری تیر شوی ؤ چې د داعش له لورې په شهادت ورسول شو.




محمد بهیه، ابوعُمیرالشامي چې وروسته یې په ابو خالد السوري شهرت وموند، د سوریې په حلب ښار کې په ۲۴/۱/۱۹۶۳م زیږیدلی ؤ. السوري د تیرې میلادي پیړی په ۸۰یمه لسیزه کې له هغه وروسته پیښور ته راغلو کله چې په سوریه کې د حافظ اسد په وړاندې وسلوال پاڅون ناکام شو، چې نوموړی د پاڅون له مخکښانو څخه ؤ. دلته له عبدالله عزام سره یو ځای شو چې د عزام په توسط له بن لادن سره ملګری شو. نوموړی په ډیرو جهاتو کې وجنګیدو او د خپل شجاعت او میړانې په مټ یې د ډیرو مجاهدینو توجه ځان ته راجلب کړه.

د روسانو له وتلو وروسته نوموړی بوسنیا ته لاړ هلته یې د سربانو په وړاندې د مسلمانانو په انتقامي بریدونو کې برخه واخیسته. وروسته نوموړي د عمر خطاب سره د هغه پیژندګلوی نه په استفادې چې د افغانستان په محاذ کې یې د ده سره لرله، له هغه سره یوځاې شیشان (چیچنیا) ته لاړو. نوموړی هلته هم په بیلابیلو محاذونو کې وجنګیده چې په عراق له

امریکایي یرغل سره سم، نوموړی له چیچنیا څخه عراق ته راغلو او د لته له زرقاوي سره ملګری شو.




ابو خالد په اتیایمو کلونو کې د حافظ اسد، د بشارالاسد د پلار په وړاندې په وسلوال پاڅون کې هم برخه اخیستې وه چې په ۲۰۱۱م کال د بشار د نظام په وړاندې له وسلوال پاڅون سره سم نوموړی له عراقه سوریې ته راواوښت او دلته یې د بن لادن په نوښت د احرارالشام الاسلامیة او دالجبهة الاسلامیة په نوم خوځښتونه تأسیس کړل. خو کله چې بغدادي خلافت اعلان کړ او له ابومحمد الجولاني سره یې ژور اختلافات پیدا شول ایمن الظواهري نوموړی د دوی تر مینځ حکم وټاکه چې همدا فیصله د ده په مرګ تمامه شوه.

ابوخالد السوري د جبهة النصرة په پلوۍ فیصله وکړه او له بغدادي یې وغوښتل چې خپل فعالیت تر عراق محدود کړي. نوموړي بغدادي او د ده ډله تورنه کړه چې په شام کې د مسلمانانو وینې په سستو او مزَخرَفو دلایلو ځان ته حلال بولي او

بغدادي يې په شام او عراق کې د جهاد فاسدونکی اوباله چې بالمقابل بغدادي د ده د وژلو فيصله صادره کړه.



۲۰۱۴م کال د فروری مياشتې په ۲۰ د جهاد او فداکاريو دنګ منار د سوريې په شمال کې د حلب ښار د حي الهلکة په سيمه کې د مجاهدينو ملګرو سره په سلا مشورو بوخت ؤ چې د بغدادي درې ځان وژونکو عسکرو د دوی په مرکز بريد وکړ او نوموړی په دې بريد کې د خپلو شپږو ملګرو سره يوځای په شهادت ورسيدو او د بغدادي عسکرو هغه څه ترسره کړل چې امريکا يې د ترسره کولو لپاره ۱۰ مليونه ډالر جايزه ټاکلي وه. نوموړی چې د عمر دوه برخې يې د جهاد په مختلفو محاذونو، هجرت، نصرت، کې تيرې کړې وې، د امت علماؤ د ده د مظلوميت له کبله عثمان الشام (د شام عثمان) ونوماوه.

د بغداد خوارجو د نوموړي سابقې ته هم پام ونه کړ او هغه سپين ګيری چې ټول عمر يې د نړی په بيلابيلو جهاتو کې کفار ټکولي ؤ، په شهادت ورساوه. ابوخالد السوري شهادت د شيخ بن لادن له شهادت وروسته دعرب مجاهدينو لپاره تر ټولو دردؤنکي پيښه وي.

## د شيخ ابوسعد الخضرمی وژنه



ابراهيم سعيد العبدالله چې د سوريې د رقة ښار په جورنية کلي کې زيږيدلی ؤ، ډير عبادت ګذار، خوش اخلاقه انسان ؤ. نوموړي چې په ابوسعد الخضرمي يې شهرت درلود، په عراق د امريکايي يرغل سره سم عراق ته لاړ او هلته يې د امريکايانو په وړاندې په جهاد کې برخه واخيسته چې په ۲۰۰۵م کال سوريې ته راستون شو. د بشار په وړاندې د پاڅون په لومړيو کې د بشار د استخباراتو له لورې دوه ځله بندي شو. په ۲۰۱۱م کال کې يې د بشار الاسد د رژيم په خلاف وسلې ته لاس کړ، او د ابومحمد الجولاني سره د عراق د محاذونه له تعارفه، ملګری شو او د رقة ښار لپاره د جبهة النصرة له لورې امير او د شرعي هيئت مشر وټاکل شو. نوموړی د سوريايي پاڅون له مخکښانو څخه ؤ، په سوريه کې لومړی کس ؤ چې په لومړي وار يې د ټولې سوريې په سطحه د رقه ښار په بشپړ ډول فتح کړ او د اسد رژيم اولسمه مشهوره فرقه يې دړې وړې کړه.

د بغدادي د خلافت له اعلان سره سم، نوموړی له اسلامي دولت سره يوځای شو خو کله چې د اسلامي دولت له جبهة النصرة سره ستونزه راغله نو نوموړي هم د شيخ ظواهري فيصلې ته منتظر شو، چې د ظواهري له فيصلې وروسته نوموړي له اسلامي دولت سره خپل پريکون اعلان کړ او بغدادي يې په دې وجه باغي اوباله چې له ظواهري سره يې خپل بيعت مات کړی.

شل ورځې وروسته نوموړی وتښتول شو چې په لومړي سر کې دواعشو داسې اوازې خپرولې چې ګنې نوموړی د يو څو قبايلي مشرانو له لخوا د اسد رژيم ته سپارل شوی دی چې له څلورو مياشتو تيريدو وروسته عدناني په يوه بيان کې د هغه د وژلو پړه په غاړه واخيسته او نوموړی يې مرتد اوباله او ځانونه يې د هغه په حق کې د الله د حکم نافذوونکي وبلل.

## د ابومحمد الفاتح اود ده د کورنۍ د ټولو غړو وژنه




ابو محمد الفاتح په ۱۹۸۳م کال د سوریې د دمشق په ښار کې په یوه متدینه کورنۍ کې زیږدلی ؤ، نوموړي خپلې ابتدایي زده کړې له خپل پلار څخه په خپل کلي کې تکمیل کړې چې د لوړو زده کړو لپاره د مصر د ازهر پوهنتون ته لاړ چې په ۲۰۰۴م کال کې یې په نبوي احادیثو کې دُکتورا ترلاسه کړه او په ۲۰۱۱م کال د لبنان د جامعة الجِنان څخه ماجیسترا حاصله کړه او خپلې سیمې ته راستون شو.

نوموړي په ۲۰۱۲م کال کې د شباب الهدی په نوم مسلح ګروپ جوړ کړ او د بشار الاسد په وړاندې یې وسله واله مبارزه پیل کړه چې په ډیره کمه موده کې یې ډیرې سیمې فتحه کړې. وروسته یې د الاتحاد الاسلامي لاجناد الشام په نوم حرکت چې د



جبهة النصرة مربوط ؤ، مشري په غاړه واخیسته.

په ۱۵/۴/۲۰۱۴م تاریخ د ابو محمد کور ته د داعش له لورې څلور کسان ولیږل شول چې ګواکې دوی میلمانه دي. دوی د شپې په ډېر قساوت ابو محمد او د ده ښځه، لور، دوه ځامن، یو ورور، او د هغه ښځه په شهادت ورسول. هغه څه چې په افغانستان کې وحشي امریکایي رابرټ بیلز د پنجوایي د ښځو او ماشومانو په حق کې ترسره کړل داعشیانو د سوریې د حارم په ښار کې د ستر غازي ابومحمد الفاتح د کورنۍ د ښځو او ماشومانو په حق کې ترسره کړل.






آیا انساني وجدان به دا اومني، چې د دې تنکیو ماشومانو سینې دې په ګولیو سورۍ سورۍ کړل شي؟ آیا دا د امریکایي ځناورو وحشت نه دی، چې په صلیبي عقیده د مسلمانانو ماشومان په دومره وحشت شهیدانوي؟ آیا خلافت به داسې ځنګلي حیوانان قایموي؟

## *د شیخ جلال بایرلي شهادت*



جلال بايرلي د سوريې دلاذقيه ښار د جبل الترکمان اوسيدونکی ؤ نوموړی يو لوی فقيه، حنفي عالم ؤ، چې په خپله سيمه کې په الفقيه الحنفي باندې مشهور ؤ لوی عالم، زاهد، مجاهد ؤ.

نوموړی د لاذقيه د شرعي هيئت غړی ؤ، کله چې د داعش وسلوالو او د کتائب الهجرة الی الله تر مينځ په لاذقيه کې جنګ رامينځ ته شو او داعشي وسلوالو د ربيعة هسپتال قبضه کړ، نوموړی د دې لپاره چې د دواړو لوريو تر مينځ د ثالث رول اداء کړي او جنګ بند شي، ابوايمن العراقي ته ورغلو ترڅو د اوربند په اړه ورسره خبرې وکړي. خو کله چې ابوايمن ته معلومه شوه چې نوموړی د سيمې د شرعي شورى غړی دی هغه شورى چې د سيمې خلکو له لورې په دې منظور جوړه شوې وه، ترڅو د دوی ترمينځ نزاعات د شريعت له لارې حل شي، ابوايمن نوموړی په خپل لاس په ډزو شهيد کړ.

د ابوايمن په اړه مو د داعش د تشکيل په برخه کې خبرې کړې وې. نوموړی د صدام د بعثي حکومت په دوران کې د هوايي استخباراتو په برخه کې فعال غړی ؤ چې اوس په سوريه کې د داعش وسله والو مشري په غاړه لري. نوموړی د ډيرو مجاهدينو په قتل تورن دی.

*شيخ ابو حازم البلد شهادت*



د سوريايي مجاهدينو ترمينځ ابو حازم البلد د بشارالاسد د استخباراتو د عمومي مسئول جنرال جامع جامع په قاتل پيژندل کيدو. نوموړي غازي په يوه بي ساري تکتيک سره جامع جامع اواژه او په ټول سوريايي جهاد کې يې په لومړي وار د اسد رژيم ته دروند زيان ورواړاوه.

جامع جامع د اسد د رژيم د استخباراتو عمومي مسئول ؤ، چې د ډيرو مجاهدينو قاتل ؤ. نوموړی په جيلونو کې د سوريايانو په تعذيب ډير مشهور ؤ. په يوټيوب کې د ده د جيل د تعذيب کليپونه اوس هم شته چې همدا مجرم د صفوان الحنت ابوحازم البلد په لاس اوژل شو.

ابو حازم د جبهة النصرة له لورې د دير الزور والي ؤ چې د غدر په لاس شهيد کړل شو. نوموړی د داعش لخوا په دې وجه مرتد اوبلل شو چې د دوی مزعوم خليفه سره يې له بيعته انکار وکړ او په شهادت ورسول شو.

## *نقيب ادريس اوغلي*

ابوعبدو په دير الزور کې د جبهة النصرة وتلی نظامي قومندان ؤ چې د داعش له لورې په شهادت ورسول شو. اوغلي په سوريه کې د امريکايانو له لورې د مطلوبينو په ليست کې ؤ.



## *ابوبصير اللاذقاني*

ابو بصير د کتائب عزالدين عبدالسلام مسئول ؤ او د سورېې په لاذقيه کې د داعش په لاس شهيد کړل شو



## ابو المقدام (قناص الدبابات)

مثنی عبدالکريم الحسين چې په ابو المقدام يې شهرت درلوده، د سورېې په ادلب ښار کې زيږيدلی ؤ چې په ۲۰۱۲م کال کې د سوريايي پاڅون کونکو سره ملګری شو. نوموړی د حرکة احرارالشام سره ملګری شو او د سوريايي نظام په وړاندې يې په ډيرو معرکو کې برخه واخيسته. ابوالمقدام د کورنيت، ټانک ضد توغندي په ويشتلو کې خاص مهارت درلود چې له امله يې د دشمن تر اتيا پورې زغروال ټانګونه په همدې توغندي د اور خوراک کړي ؤ. مجاهدينو به چې کله په کومه سيمه کې د غټ بريد پلان درلود، ابو المقدام به يې دعوت کولو. نوموړی د مجاهدينو تر مينځ په قناص الدبابات ( د ټانګونو ښکاري) باندې



مشهور ؤ.

په ۱۶/۵/۲۰۱۴ نومورى د داعش د تلاشی له يوې پوستې تيريده چې کله هغوی اوپېژنده راکوز يې کړ او د ارتداد په تور يې د ده مرئ په چاړه پرې کړه او د اسلام دا لوی مجاهد يې په ډير وحشت او قساوت شهيد کړ.

## *ابوعبيدة البنشي*




بنشي د حلب په يوه هسپتال کې د کومکي ډاکټر په توګه دنده ترسره کوله چې د داعش له لورې اوژل شو خو په لومړي سر کې دوی د بنشي له وژلو انکار کاوه، دا چې بنشي په تنظيمي لحاظ په حرکة احرارالشام الاسلامية پورې تړلی ؤ نو دوی د بنشي د قتل په اړه د داعش څخه د يوې مستقلې شرعي محکمې غوښتنه وکړه چې له دير تال متال وروسته دا دوسيه وتړل شوه.

## *د داعش له لورې په سوريه کې وژل شوي مجاهدينو اجمالي ليست*

۱ - ابو خالد السوری

پوسټ : امير حلب

تنظيم : الجبهه الاسلاميه

۲ - ابو حسين الديک

پوسټ : نظامي قومندان

تنظيم: الجبهه الاسلاميه

۳ - ابو ريان

پوسټ : قوماندان تل ابیض

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۴ - ابوعبیده البنشی

پوسټ : المسئول الاغاثی

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۵ - عبدالقادر العجیل

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۶ - ابو المقدادم

پوسټ : مسئول توپچي

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۷ - عدنان بکور

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۸ - عمار لیلی

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۹ - عمر قدور

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۱۰ - ابو الخطاب

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۱۱ - ابو هارون

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: الجبهه الاسلامیه

۱۲ - ابو عبد السميع

پوسټ : مسئول شرعی

تنظيم: الجبهه الاسلاميه

۱۳ - ابو دجانه

پوسټ : نظامي قومندان

تنظيم: جبهه النصره

۱۴ - ابو حازم

پوسټ : امير دير الزور

تنظيم: جبهه النصره

۱۵ - ادريس اوغلی

پوسټ : نظامي قومندان

تنظيم: جبهه النصره

۱۶ - ابو اسامه

پوسټ : نظامي قومندان

تنظيم: جبهه النصره

۱۷ - ابو البراء التونسی

پوسټ : مسئول شرعی

تنظيم: جبهه النصره

۱۸ - ابو المثنی

پوسټ : نظامي قومندان

تنظيم: جبهه النصره

۱۹ – علي الهجر

پوسټ : مسئول شرعی

تنظيم: جبهه النصره

۲۰ - ابو اليمان

پوسټ : نظامي قومندان

تنظیم: جبهه النصره

۲۱ - ولید الاجدع

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: جبهه النصره

۲۲ - ابو فیصل

پوسټ : مسئول شرعی

تنظیم: جبهه النصره

۲۳ - ابو محمد الفاتح

پوسټ : امیر ادلب

تنظیم: جبهه النصره

۲۴ - ابو سعد الحضرمی

پوسټ : امیر الرقه

تنظیم: جبهه النصره

۲۵ - ابو جندل

پوسټ : امیر البوکمال

تنظیم: جبهه النصره

۲۶ - ابو سراج الانصاری

پوسټ : مسئول شرعی

تنظیم: جبهه النصره

۲۷ - ابو عائشه العراقی

پوسټ : نظامي قوماندان

تنظیم: جبهه النصره

۲۸ - ابو اللیث

پوسټ : قاضی شرعی

تنظیم: الهیئه الشرعیه

۲۹ - عبدالحافظ الجریان

پوسټ : قومندان

تنظيم: جماعه التوحيد و الجهاد

۳۰ - ابو سليمان الحموى

پوسټ : قومندان

تنظيم: جند الشام

۳۱ - ابو بصير

پوسټ : قومندان

تنظيم: کتائب العز بن عبد السلام

۳۲ - ابوبکر الادلبى

پوسټ : قومندان ګردان

تنظيم: جيش الحر

۳۳ - جلال بايرلى

پوسټ : مسئول شرعى

تنظيم: الهيئه الشرعيه

۳۴ - ابو اسلام

پوسټ : قومندان ګردان

تنظيم: جيش الحر

دا په سوريه کې د داعش له لورې د وژل شويو هغو مجاهدينو ليست ده چې رسمي مسئولين او لوی لوی قومندانان ؤ، خو د عراق بعثي جنرالانو په دې جرم وژلي چې د دوی مزعوم خليفه سره يې له بيعته انکار کړی ؤ.

## د داعش له لورې په سوريه کې د مسلمانانو عام وژنه

### د شعيطات عام وژنه(مجزرة الشعيطات)

شعيطات دسورېي د ختيځ په ديرالزور کې يوه مشهوره قبيله ده چې د عکيدات قبيلې يو شاخ دی او د ديرالزورپه درو کليو ابو حمام، الکشکية، غرانيج کې اباد دي. شعيطات په سوريه کې لومړنی قبيله وه، چې د بشار په وړاندې يې سوله ييزې مظاهرې وسله وال پاڅون ته واړولې او دير الزور يې په بشپړ ډول له سوريايي رژيم څخه پاک کړ. شعيطات د ټولو سوريايي قبايلو تر مينځ په ميلمه پالنه، زړورتيا، شهرت لري. کله چې بغدادي د خلافت دعوی وکړه او خپل قوت يې د سورېي په لورې

نقل کړ، په شعیطات قبیله یې له دې وجې ستر‌ګې خښې شوې چې د سوریې په سطحه شعیطات تر ټولو ډېر د تیلو څاګان لري چې ترټولو مشهور او لوی څاه یې د حقل العمر په نوم دی.

ابو علي الشعیطي د شعیطات له قبیلې څخه د بغدادي سره بیعت وکړ او له ټولې قبیلې یې د بغدادي سره د بیعت غوښتنه وکړه چې د شوری المجاهدین له لورې ونه منل شوه. شوری المجاهدین د سوریې د مجاهدینو له مختلفو ډلو لکه جبهة النصرة، احرارالشام او نورو څخه جوړ شوی د شعیطات قبیلې د مجاهدینو تشکیل ؤ. د بغدادي عسکرو په شعیطات د برید تکل وکړو خو دا چې شعیطات د اسد رژیم څخه په لوی مقدار سپکې او درنې وسلې نیولې وې نو داعش پرې حملې ته زړه ښه نه کړ او د راتلونکې کومې موقع په انتظار پاتې شول او د شعیطات سره یې یو تړون لاسلیک کړ چې داعش به د دوی په چارو کې لاسوهنه نه کوي او په بدل کې به شعیطات د داعش په وړاندې له جنګه لاس اخلي.

خو دا معاهده هغه وخت د داعش په غدر ماته شوه چې کله دوی د دې قبیلې د یوه ځوان د واده په مراسمو چاپه اوهله او دغه ځوان یې اواژه، چې بالمقابل د شعیطات قبیلې ځوانانو د داعش په مرکز چاپاؤ راؤړ او د داعش ځایي مشر یې اواژه او د دوی سیمه ییز مرکز یې وسوځاوه. داعش د فرقة القصاص په نوم یوه لویه قوه چې په سپکو او درنو وسلو سمبال وه، د شعیطات د عام وژنې لپاره راولیږله چې له څلورو لوریو یې د دوی کلیو ته امریکایي توپونه نصب کړل.

ابوعبدالله الکویتي د داعش هغه مفتي ؤ چې د شعیطات د قضیې په اړه فیصله ورته وسپارل شوه. نوموړي د دوی په هکله د بنوقریظه ؤ فیصله وکړه، هغه چې سعد بن معاذ د یهودانو په هکله کړې وه، چې د دوی هر محتلم (بالغ) کس دې اوژل شي او ټول مالونه او کورونه دې یې غنیمت کړل شي او ښځې دې وینځې وګرځول شي. ابوعبدالله همدا فیصله د شعیطات د سني مسلمانو قبائلو په هکله واؤروله، چې د داعش له لورې له څلورویشتو ورځو جنګ وروسته دوی د شعیطات درو کلیو ته ننوتل او په عام وژنه یې پیل وکړ.

د یادونې وړ ده چې د داعش دا لوی مفتي ابوعبدالله الکویتي تیر کال په خپله د داعش له لورې په دې تور اوژل شو چې نوموړی د سویس د استخباراتو جاسوس دی او هغوی ته یې جاسوسي کوله. الله اکبر د دوه نیم زره کسانو د قتل مفتي د سویس د استخباراتو ایجنټ وخوت!!!

داعشیان چې کله دیر الزور ته ننوتل، ټول شعیطیان ښځې او نر یې راټول کړل او له څوارلسو کالو پورته ځوانانو په وژلو او نیولو یې لاس پورې کړ، چې په ۲۴ ساعتونو کې یې ۱۲۰۰ کسان له تیغه تیر کړل او اتلس سوه کسان ژوندي ورک شول. دا هغه کسان نه ؤ چې د دوی سره یې مخامخ جګړه کړې وه ځکه هغوی ډیری له منطقې وتلي ؤ، یواځې عام کلیوال او بې ګناه عام وګړي پاتې ؤ.

https://issdarat.net/2014/09/07/fshared2/

دوه میاشتې وروسته د داعش ساحرې او کاذبې میډیا د الاعتصام په نوم رسمي ستوډیو د (فشرد بهم من خلفهم) د لړۍ دویمه برخه نشر کړه چې په لومړي سر کې پکې د یوه هوایي ډګر د فتحې عملیات ځای شوي او په ۱۵ دقیقه کې همدا د

شعيطات قبيلې سني ځوانان ليدل کيږي چې په بدن قميص اوپرتوګ نه لري او په نيکرونو کې په لويو لويو مزدو موټرو کې بارول کيږي. لاندې ترې ليکل شوي (نصيري پوځ د خپل انجام په لورې) چې ګواکې دا کسان د پوځ منصبدران دي او دوی ژوندي نيولي او اوس يې اعداموي په داسې حال کې چې په لاندې لينک کې مشاهده کولی شی چې نوموړي کسان اصلا د شعيطات قبيلې بې دفاع او بې ګناه ولسي وګړي دي چې د سويس د استخباراتو د يو جاسوس په فتوی ترې قميص او پرتوګ ايستل شوي او د نصيري پوځ په نوم وژل کيږي.

https://m.youtube.com/watch?v.Q4OMmuwOunI

څومره لوی تحريف او تزوير؟ لومړی خو په هغوی د بنوقريظه ؤ حکم کول، د داعش د جاهلو مفتيانو له احکامو ناخبري په ډاګه کوي. څنګه دوی په يوه مسلمانه سني قبيله چې يواځنۍ جرم يې د بغدادي له بيعته انکار دی، د بنوقريظه ؤ حکم کوي؟ چې اصلا هغه حکم د يهودانو غدارانو په اړه شوی ؤ ځکه هغوی له مسلسلو غداريو سره سره، وروستی لويه غداري په مسلمانانو پسې د احزابو راټولول ؤ، چې له امله يې مسلمانانو ته سخت درد ورسيدو. بيا د دوی د ميډيا دومره لوی تحريف چې د شعيطيانو عام وژنې ته يې د نصيري پوځ د عسکرو نوم ورکړ.

داعش له دې درواغو او تحريف څخه د ميډيا په زور په خلکو رعب غورځول غواړي چې د صدام د پوځ بعثي جنرالان په دې برخه کې خورا لوړه تجربه لري.

شعيطيان له کورونو وشړل شول او د دوی ټول مالونه، څاوري، او نور سامانونه د داعشي غازيانو له لورې غنيمت کړل شول، چې له ډيرې مودې وروسته نورو قبايلو د داعش مشر بغدادي ته درخواست وکړ چې شعيطيان معاف کړي او پريږدي چې خپلو کورونو ته واپس شي.

بغدادي په لاندې شروطو موافقه وکړه چې شعيطيان دې خپلو کورونو ته واپس شي.

(۱) هر شعيطي به په خپل ځان د کفر اعتراف کوي، له نوي سره به کلمه وايي، چې د توبې په هغه اوراقو کې چې په شعيطيانو به تقسيميدې لومړی همدا شرط ليکل شوی ؤ.

(۲) تر ابده پورې، که د هر شعيطي سره وسله ګير شوه په همدې خپله وسله به وژل کيږي.

(۳) که اسلامي دولت ته کوم مطلوب کس د چا په کور کې ونيول شو نو د هغه کور به د ده او د ده د فاميل په سر راړنګول کيږي او ټول فاميل به يې وژل کيږي.

(۴) هر شعيطي به د داعش د نفوسو د ثبت مرکز سره خپل ځان راجيستر کوي چې د ګوتو نشانونه او عکسونه به يې هلته ثبتيږي.

(۵) هر شعيطي چې عمر يې له ۱۴ کالو اوښتی وي، د داعش له لورې په سيمه کې جوړو شويو شرعي دورو کې به شرکت کوي، چې دا شرعي دورې د د ورځې په جريان کې يو ساعت د سهار له خوا يو ساعت د ماښام لخوا وي. د يادونې وړ ده چې داعش چې کله کومه سيمه لاندې کړي، هلته د خپل تکفيري، خارجي فکر د خورولو لپاره عامو خلکو ته شرعي دورې شروع کوي چې په ځايي اوسيدونکو دغو دورو ته حاضريدل اجباري وي.

په لاندې لينک کيکاږلو سره د شعيطاتو د پيښې په اړه په مستند ډول ډير څه ليدلی شی

http://m.youtube.com/watch?sts.16903&utcoffset.300&v.UDXRFl0mCP4&has_verified.1&client.mv-google&layout.mobile

## د بوکمال عام وژنه (مجزرة البوكمال)

بوکمال د سوريې په ختيځ کې پروت ښارګوټی دی چې د دير الزور مربوط دی او د فرات سيند د عراق سره د بوکمال له حدودو نښليدلی، چې د عراق له تدمر سره پوله لري او په سوريه کې تر ټولو د نفطو غني سيمه بلل کيږي چې ترټولو لوی څاه يې د کونيکو په نوم ياديږي. بوکمال په ۲۰۱۴ م کال کې د جبهة النصرة او جيش الحر په ګډو عملياتو کې د اسد له رژيم څخه په مکمل ډول تصفيه شو. جبهة النصرة هلته د اداري چارو سمبالښت په غاړه واخيست او د الهيئة الشرعية د تشکيل لپاره يې ابوالليث د مسئول په توګه وټاکه.

صدام الجمل چې د احفاد الرسول په نوم لوا مسئول ؤ، په سيمه کې د شرعي هيئت له لورې په ناروا وژنو، غلاؤ، اختطافونو مجرم اوپيژندل شو چې له سيمې وتښتيدو او د دواعشو له خليفه سره يې بيعت وکړ. دواعش چې له وخته موقې ته په طمع ؤ، دا فرصت يې غنيمت اوباله او د بوکمال اهميت ته په پام يې د دې ښارګوټي د نيولو لپاره قوا وليږله چې هغوی لومړی په عامه ځايونو کې ځانوژوکي بريدونه تر سره کړل او بيا يې هلته د عامو مسلمانانو په وژنه پيل وکړ.

د بوکمال په عام وژنه کې د جبهة النصرة سيمه ييز مسئول ابوالليث هم اوژل شو او د لواء القادسية مجاهدينو ته لومړی د داعش له لورې امن ورکړل شو چې وروسته په غدر ټول شهيدان کړل شول. د بوکمال په عام وژنه کې د داعش په لاس په ۱۰ ساعتونو کې ۱۸۰ کسان اوژل شول. په بوکمال کې د داعش مستند وحشتونه په لاندې ويډيويي لينک کې کتلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.wmAWr9qoEWM

https://m.youtube.com/watch?feature.youtu.be&v.F9LLkFQbPd4

صدام الجمل چې په سیمه کې یو لوی غل او اختطافګر بلل کیده، د داعش سره له بیعت وروسته الشیخ المجاهد شو او د سیمه ییزو مسلمانانو په کورونو یې بریدونه او چاپې پیل کړې، چې مستنده ویډیو یې په لاندې لینک کتلی شی

http://youtu.be/qtPkr8iGbLU

## د رقة عام وژنه (مجزرة الرقة)

رقه ښار د سوریې په شمال کې پروت، د سوریې تر ټولو لوی او تاریخي ښار دی چې د تیلو لوی لوی ځاه ګان لري. داعش چې سوریې ته راننوت نو لومړی یې په همدې ښار قبضه وکړه. دا په دې خاطر چې دوی نه غوښتل چې د دوی د مزعوم خلافت مرکز دې عراق وي ځکه دوی د هغو احادیثو څخه په ویره کې ؤ، چې د عراق د فتنو په اړه وارد شوي دي نو دوی غوښتل چې د امت له دې تنقیده ځان وژغوري. رقه ښار د جبهة النصرة او احرارالشام له لورې د سوریایي نظام څخه ونیول شو، خو دواعشو اوغوښتل چې دا مهم ستراتیژیک ښار تر خپلې ولکې لاندې راولي، چې له څو اونیو پرلپسې بریدونو وروسته دوی وتوانیدل چې دې ښار ته ننوځي. د احرارالشام او جبهة النصرة په سلګونو مجاهدینو د سوریایي نظام ۱۷فرقه محاصره کړې وه چې دواعشو دوی ته کلکې وعدې ورکړې، چې که دوی خپلې اسلحې ورته وسپاري نو په رقه کې به د وینو د تویيدو مخه ونیول شي. مجاهدینو همداسې وکړل او د دوی په وعدو یې باور وکړو او دوی له څو ورځو سلا مشورو وروسته پریکړه وکړه چې خپلې وسلې دوی ته وسپاري. خو دواعشو د دوی سره له کلکو لوزونو باوجود، دوی ته لاسونه د شا لخوا وروتړل او ټول ۱۷۰ کسان یې په مرمیو او چړو اوژل.

د رقه ښار په سلوک سیمه کې د هوته په نوم یو لوی غار موجود دی چې ژوروالی یې زرګونو فوټه ته رسیږي، د داعش جنګیالي په یوه ویډیو کې لیدل کیږي چې د دوی له لورې وژل شوي مجاهدین همدغه غار ته غورځوي.

کله چې دواعشو د رقه ښار ونیو، د جبهة النصرة د ځایي مشر ابوسعد الخضرمي له وژلو ورسته یې هلته نور په لسګونه مجاهدین په عام محضر کې د دې ایت په استناد اوژل، چې إنّما جزاء الذین یحاربون الله الآیة.

## د رستین عام وژنه (مجزرة الرستين)

رستن د حمص د ریف یو ښارګوټی ده چې د داعش له ورتګ وراندې د سیمې خلکو د داعش په خلاف مظاهرې وکړې او په یوه صادر شوي بیان کې یې د دوی سیمې ته د داعش ورتلل وغندل. خو کله چې دوی په کلي حمله وکړه لومړی یې د خالد بن الولید د لواء مشر همام الدیک اواژه وروسته یې د هغو خلکو په نیولو او وژلو پیل وکړ چې په مظاهرو کې یې ګډون کړی ؤ. دوی په یوه برید کې د ۵ښځو او۴ماشومانو په ګډون ۱۶ بې ګناه عام وګړي اوژل. د رستین د وژنو مستنده ویډیو په لاندې لینک کتلی شی

https://m.youtube.com/watch?v.FjrPq5HFg4I

## په جرابلس کې د لواء التوحيد د غړو عام وژنه (مجزرة جرابلس)

د جرابلس ښارګوټی د سوريې په شمال ختيځ د حلب په ريف کې پروت دی. جرابلس ته له ننوتو سره سم دواعشو د لواء التوحيد په غړو حمله وکړه چې په يو دم يې ۸۰ کسان اوژل چې د دوی سرونه يې په ځيخونو کوړي کړل او بيا يې ورسره افتخاري او يادګاري عکسونه واخيستل. په لاندې ورکړل شوي لينک کې د جرابلس عام وژنه ليدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.rfh5wVPtb3A

## د حارم په زندان کې عام وژنه (مجزرة سجن حارم)

حارم د ادلب په ريف کې يو ښارګوټی دی کله چې پرې د بغدادي پلويانو خپله ولکه ټينګه کړه نو ځايي خلک يې په ډول ډول بهانو او جنايي جرمونو د حارم په مشهور زندان کې بنديان کړل، خو چې په دوی د مجاهدينو پريکنده بريدونه شروع شول او دوی اړ شول چې دا ښار پرېږدي، په دې زندان کې ټول بنديان هغه که سياسي ؤ او که جنايي؛ اوژل. په دې پيښه کې د داعش په لاس ۶۶ کسان په داسې حال کې وژل شوي ؤ چې لاسونه يې ترشا تړل شوي ؤ. چې په مستند ډول يې په لاندې لينک کې کتلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.0T9KQTagqK8

د حارم د زندان د عام وژنو بله مستنده ويډيو: http://www.youtube.com/watch?v.4iPZnjiGUhA&feature.youtu.be

## د کفرحمرة په ښارګوټي کې په معهد الکهرباء کې عام وژنه(مجزرة معهدالکهرباء)

کله چې دواعش د حلب د کفرحمرة له ښارګوټي وشړل شول شاته يې لويه عام وژنه پرېښوده. په معهدالکهرباء نومي ودانۍ کې د دې ښار د عامو خلکو په لسګونه جسدونه اومندل شول، هغه چې دوی په يوه او بل تور له ځان سره بنديان کړي ؤ. د دوی ترمينځ کم عمره ماشومان هم ؤ، چې د ټولو وژل شويو شمير ۱۷۰ کسانو ته رسيدو. په لاندې لينک کې د معهد الکهرباء د عام وژنه ويډيو کتلی شی

https://m.youtube.com/watch?v.P9tUWRwwASw

دا هم د معهد الکهرباء بله زړه بوږنونکې ويډيو چې داعشيانو د کلي په لسګونه عام خلک وژلي او بيا يې ځاه ګانو ته د دوی جسدونه غورځولي دي.

https://m.youtube.com/watch?v.LmVrN_iMDoI+%E2%80%A6+%28https%3A%2F%2Fwww.youtube.com%2Fwatch%3Fv%3DLmVrN_iMDoI%C2%A0%E2%80%A6%29

## د حلب د روغتون عام وژنه(مجزرة مشفی حلب)

په حلب ښار کې ځايي اوسيدونکي د داعش د ځينو کړنو په وړاندې په سوله ييزو مظاهرو راؤتل چې د داعش د ځايي مشر ابواللیث الانصاري په حکم ټول مظاهره کؤنکي د حلب روغتون ته راټول کړل شول او په ډلييز ډول اوژل شول چې شميره يې تر ۲۳۰کسانو رسيده. د وژل شويو په مينځ کې داسې ماشومان هم شامل ؤ چې عمرونه يې له ۱۲ کالو ښکته ؤ. په لاندې لينک کې په دې اړه ليدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.yVd4AvLPdfw

او دا هم د حلب د روغتون د عام وژنې بله مستنده ويډيو

https://m.youtube.com/watch?v.RynUqIq_JFI

او دا يې بله

(https://www.youtube.com/watch?v.J021SwRtitA%C2%A0%E2%80%A6)

## په حلب کې د خبريالانو عام وژنه (مجزرة الاعلاميين حلب)

په ۲۰/۱/۲۰۱۴م داعشيانو په حلب کې ټول خبريالان او د مطبوعاتو کارکؤنکي راغونډ کړل. دا کسان چې شمير يې ۸۸ کسانو ته رسيدو تر ډيره وخته د داعش سره بنديان ؤ خو کله چې دواعش له حلب ځخه وشړل شول، پرته د ښه او بد د تميز يې ټول خبريالان په جماعي ډول اوژل. چې په لاندې لينک کې يې په مستند ډول ليدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.nsPWKEvxGAc

## د رتيان عام وژنه (مجزرة رتيان)

دواعشو په حلب کې بله بوږنونکي عام وژنه په رتيان ښارګوټي کې ترسره کړه چې قربانيان يې تر ۶۷ رسيدل او ټول عام بې ګناه خلک ؤ. په لاندې لينک کې يې اوګورئ.

https://m.youtube.com/watch?v.O43rg1OH3t4

## د مِنغ د هوايي ډګرعام وژنه (مجزرة مطارمِنغ)

منغ په حلب کې نظامي هوايي اډه ده چې د سوريايي مجاهدينو له لورې ونيول شوه او داعشيان ترې وشړل شول خو دوی بيا

هم هلته د دوی سره ټول بندیان په ډلییز ډول اوژل، چې په لاندې ویډیو کې یې په لیدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.sTwtyk_gZZI

## د حریتان عام وژنه (مجزرة حریتان)

حریتان د حلب په شمال لویدیځ کې پروت دی چې دلته هم داعشیانو د عام ولس په وړاندې نه بښونکی جنایت ترسره کړ. دوی چې کله له حلب وشړل شول شاته یې د ځایي ولسي خلکو ډلییز قبرونه پرېښودل چې په لاندې ویډیويي لینک کې کتلی شی چې په څومره قساوت بې دفاع ولسي خلک وژل شوي دي.

https://m.youtube.com/watch?v.LmVrN_iMDoI

دا یې دویم ویډیويي لینک چې د داعش په یوه قرارګاه کې د ولسي خلکو یو ډلییز قبر موندل کیږي

https://m.youtube.com/watch?v.NiwX9FZ-Kmc

## په شیخ نجارکې عام وژنه (مجزرة شیخ نجار)

شیخ نجار د سوریې د حلب مربوط ښارګوټی دی چې د داعش له وتلو وروسته هلته هم یو ډلییز قبر اومندل شو چې پکې د هغه خلکو مړي اومندل شول چې د داعش له لوري په یوه او بله بهانه نیول شوي ؤ.

https://m.youtube.com/watch?v.DbhT7jVEnSY+%E2%80%A6

## د دیرحسان عام وژنه (مجزرة دیرحسان)

دیر حسان د سوریې د ادلب ښار مربوط ښارګوټی دی چې هلته هم داعش ورته وحشتونه کړي دی او د دوی له وتلو وروسته هلته ډلییز قبر اومندل شو چې تر ۴۸ کسانو مړي پکې اومندل شول.

په لاندې لینک کې یې لیدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.3HQCn1b_z6s+%E2%80%A6+%28https%3A%2F%2Ft.co%2FFY2cnmWw74%29

## د اعزازد الفیصل په ژرنده کې ډلییزقبراوعام وژنه (مجزرة اعزاز)

اعزاز د حلب په شمال کې پروت ښارګوټی دی. کله چې داعشیان د دې ښار څخه شړل کیدل نو لومړی یې د الفیصل په نوم لویه ژرنده چې ۴۰۰ کسانو مزدورانو پکې کار کولو، رنګه کړه بیا هلته د اعزاز په ځایي روغتون کې، هغه چې د ولسي وګړو لپاره ؤ ټول درمل وسوځول. په دې هم بسنه ونه شوه بلکې د دوی له وتلو وروسته هلته ډلییز قبر اومندل شو چې د سیمې د هغو خلکو مړي پکې وومندل شول چې د داعش له لوري له خپلو کورونو نیول شوي ؤ. په لاندې لینک کې یې په مستند ډول اوګورئ.

https://m.youtube.com/watch?v.7L5p0Ok3SUA+%E2%80%A6

دا هم په اعزاز کې د ډلییزو وژنو بله ویډیو.

https://m.youtube.com/watch?v.Ed_pnozDPVo

دلته بله ویډیو هم لیدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.wMl5x-cJWB8

دا هم په اعزاز کې د داعش د وحشت او ظلم بل ثبوت.

https://m.youtube.com/watch?v.z3CQw0Zhuw0

## په مرکدة ښارګوټي کې عام وژنه (مجزرة مرکدة)

مرکدة د سوریې د حسکة ښار مربوط ښارګوټی دی. کله چې د سیمې اوسیدونکو د داعش د شړلو لپاره عملیات پیل کړل، داعشیانو د غراد په نوم د امریکایي توپونو خولې د کلي د عامو اوسیدونکو په لورې ورواړولې چې په دې بریدونو لسګونه عام کلیوال اوژل شول. په لاندې لینک کې یې لیدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.TDG9J5KVwHM

دا هم د دې وحشت لپاره بل ویډیویي ثبوت

https://m.youtube.com/watch?v.TDG9J5KVwHM

## په دانا کې ډلییز قبر او عام وژنه (مجزرة دانا)

دانا د ادلب په ۳۶ کیلومترۍ کې پروت د دې ولایت مربوط ښارګوټی دی، چې هلته هم داعش ډلیزه عام وژنه کړې او د دوی له وتلو وروسته د دوی په یوه قرارګاه کې د کلي د عامو وګړو یو ډلییز قبر اومند ل شو. په لاندې ویډیویي لینک یې کتلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.0uJ7YihEW4s+%E2%80%A6

## د رام حمدان عام وژنه ( مجزرة رام حمدان)

رام حمدان د ادلب په مرکز کې پروت ښارګوټی ده چې هلته هم دواعشو د عام ولس په وړاندې نه بښونکی جنایت ترسره کړی. په لاندې ویډیویي لینک کې یې اوګورئ.

https://m.youtube.com/watch?v.aKXdMDUG5V8

https://m.youtube.com/watch?v.6IR8mZR60SE

## د تل رفعت عام وژنه او ډلییز قبر (مجزرة تل رفعت)

تل رفعت د سوریې د حلب ولایت مربوط ښارګوټی دی، چې دلته هم داعش د مالکیه په کلي کې د مسلمانانو عام وژنه وکړه

چې له سيمې څخه د دوی له شړل کيدو وروسته هلته ډليز قبر اومندل شو چې قربانيان يې تر ۴۰ کسانو رسيدل. دا هم تاسو او دا مو د دې عام وژنې ويډيو.

https://m.youtube.com/watch?v.a0R7q1KW1z0

دا يې هم دويمه ويډيو

https://m.youtube.com/watch?v.W-CRlpDhPL8

او دا هم دريمه ويډيو له يوې دردونکې عربي ترانې سره

https://m.youtube.com/watch?v.pQxXCrCXpvs

## په حلب کې د يوه فاميل د ټولو غړو، د ښځو ماشومانو وژنه. په لاندې ويډيويي لينک کې

https://m.youtube.com/watch?v.fwpImIKWjqI

الله اکبر! څومره دردؤنکې؟ څومره سوي سوي کړيکې؟ ايا الله تعالی به د دې مظلومانو انتقام نه اخلي؟ ايا داسې ځناور به اسلامي خلافت قايموي؟ ايا اسلامي خلافت د مسلمانانو د وينو په تويولو قايميداي شي؟

## په يوه مياشت کې ۴۶ ځان وژونکي بريدونه

لاندې درته د ۲۰۱۴م کال د يوې مياشتې احصائيه مخې ته ږدو. داعشي جنګياليو په سوريه کې په مجاهدينو په يوه مياشت کې ۴۶ ځان وژونکي بريدونه ترسره کړي دي چې په دې موده کې يې د اسد په رژيم يو بريد هم نه دی ترسره کړی.

| شماره | هدف | ځاي | تاريخ | د قربانيانو شمير |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | د احرارالشام يوه پوسته | رام حمدان (حلب) | ۱۳/۱/۲۰۱۴ | ۲۱ شهيدان |
| ۲ | الجبهة الاسلامية | الاتارب (حلب) | ۱۶/۱/۲۰۱۴ | ۲ شهيدان |
| ۳ | لواء التوحيد (الجبهة الاسلامية) | قرية جازر (اعزاز) | ۱۷/۱/۲۰۱۴ | ۹شهيدان |
| ۴ | صقورالشام (الجبهة الاسلامية) | قرية افس (ادلب) | ۱۱/۱/۲۰۱۴ | ۳شهيدان |
| ۵ | د سيوف الحق مجاهدينو يوه قرارګاه | سراقب(ادلب) | ۱۱/۱/۲۰۱۴ | ۴شهيدان |
| ۶ | لواءالتوحيد(الجبهة الاسلامية) | د هنانو کلی(حلب) | ۱۱/۱/۲۰۱۴ | ۵شهيدان |
| ۷ | د جبهة الاسلامية قرارګاه | د هنانو کلی (حلب) | ۱۱/۱/۲۰۱۴ | ۷شهيدان |
| ۸ | حرکة احرارالشام | الميادين(ديرالزور) | ۸/۱/۲۰۱۴ | ۴شهيدان |
| ۹ | لواءالتوحيد | الباب(حلب) | ۸/۱/۲۰۱۴ | ۴شهيدان |
| ۱۰ | لواءالتوحيد (الجبهة الاسلامية) | جرابلس | ۱۵/۱/۲۰۱۴ | ۳۰شهيدان |
| ۱۱ | لواءالتوحيد (الجبهة الاسلامية) | جرابلس | ۱۵/۱/۲۰۱۴ | ۷شهيدان |
| ۱۲ | لواءالتوحيد (الجبهة الاسلامية) | تل رفعت(حلب) | ۱۶/۱/۲۰۱۴ | |
| ۱۳ | لواءالتوحيد (الجبهة الاسلامية) | کفرنايا | ۱۶/۱/۲۰۱۴ | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ١۴ | لواءالتوحيد (الجبهة الاسلامية) | منبج(حلب) | ١٧/١/٢٠١۴ | ۶شهيدان |
| ١۵ | لواءالتوحيد (الجبهة الاسلامية) | معبرباب السلامة | ١١/١/٢٠١۴ | ۴شهيدان |
| ١۶ | الجبهة الاسلامية | البريج | ٢/١/٢٠١۴ | ١٢شهيدان |
| ١٧ | الجبهة الاسلامية | قرب باب السلامة | ١١/١/٢٠١۴ | ٨شهيدان |
| ١٨ | | ادلب | ٧/١/٢٠١۴ | ۶شهيدان |
| ١٩ | منطقة سجو | حلب | ٢٠/١/٢٠١۴ | ٢شهيدان |
| ٢٠ | جيش المجاهدين | معارة الارنيق(حلب) | ٢۶/١/٢٠١۴ | ٣شهيدان |
| ٢١ | لواء الاقصى | تلقراح(حلب) | ١٣/٢/٢٠١۴ | ١شهيد |
| ٢٢ | جيش المجاهدين | باشكوى(جلب) | ٨/٢/٢٠١۴ | ۵شهيدان |
| ٢٣ | جبهة النصرة | رتيان (حلب) | ١۴/٢/٢٠١۴ | ٢شهيدان |
| ٢۴ | جبهة النصرة | عويجل(حلب) | ١٢/١/٢٠١۴ | ١شهيد |
| ٢۵ | جبهة النصرة | مقام اويس(الرقة) | ١۴/١/٢٠١۴ | ١شهيد |
| ٢۶ | ثوار المنطقة | كفرحمرة | ۶/٢/٢٠١۴ | ٩شهيدان |
| ٢٧ | جيش المجاهدين | اورم الكبرى(حلب) | ١٩/١/٢٠١۴ | |
| ٢٨ | احرارالشام | لميادين(ديرالزور) | ١٧/٢/٢٠١۴ | ۴شهيدان |
| ٢٩ | جبهة النصرة | غريبة(ديرالزور) | ١٢/٢/٢٠١۴ | ۵شهيدان |
| ٣٠ | لواءالتوحيد | الراعي(حلب) | ٣/٢/٢٠١۴ | ١۶شهيدان |
| ٣١ | لواءالتوحيد | قباسين (حلب) | ٩/١/٢٠١۴ | ۴شهيدان |
| ٣٢ | الجبهة الاسلامية | باب السلامة | ٢٠/٢/٢٠١۴ | ٣٧شهيدان |
| ٣٣ | لواءالتوحيد | كفرنايا(حلب) | ١٧/١/٢٠١۴ | |
| ٣۴ | احرارالشام | الشعار(حلب) | ٢٢/٢/٢٠١۴ | ۴شهيدان |
| ٣۵ | ثوار بنين | بينين(حلب) | ١۵/٢/٢٠١۴ | ١شهيد |
| ٣۶ | جيش مؤتة | الشحيل(ديرالزور) | ١٩/٢/٢٠١۴ | ۶شهيدان |
| ٣٧ | جبهةالنصرة | الشحيل(ديرالزور) | ١٩/٢/٢٠١۴ | ١شهيد |
| ٣٨ | جبهةالنصرة | البصيرة (ديرالزور) | ٩/٢/٢٠١۴ | ٢٢شهيدان |
| ٣٩ | ثوارالصور | الصور(ديرالزور) | ٢١/٢/٢٠١۴ | ٣شهيدان |
| ۴٠ | جبهةالنصرة | الجفرة (ديرالزور) | ١٠/٢/٢٠١۴ | ۵شهيدان |
| ۴١ | احرارالشام | درنج (ديرالزور) | ٢٢/٢/٢٠١۴ | |
| ۴٢ | جبهة النصرة | مركدة (الحسكة) | ٢٣/٢/٢٠١۴ | ٣شهيدان |
| ۴٣ | جيش المجاهدين | الاتارب (حلب) | ١۶/١/٢٠١۴ | ٣شهيدان |
| ۴۴ | الجبهة الاسلامية | جرابلس(حلب) | ١۵/١/٢٠١۴ | ٣٠شهيدان |
| ۴۵ | الجبهة الاسلامية | الباب (حلب) | ٨/١/٢٠١۴ | ٧شهيدان |
| ۴۶ | جبهة النصرة | الشميطية | ٢۵/٢/٢٠١۴ | ٢شځي شهيداني |

# لسم فصل:

## د داعش رسوايي (انځوريز)

د بغداد د بعث جنرالان کوشش کوي تر څو د نوعمره ځوانانو عواطف خپل کړي. دوی د خپلې ساحرې او هاليوودي باليوودي ميډيا په زور تل هڅه کړې، تر څو هغه حقايق پټ کړي چې د پردې تر شا دي. خو دوی په دې کار کې ورځ تر بلې د ناکامۍ او رسوايي په لور روان دي. د ليکنو په دې لړۍ کې درسره هغه انځوريزې رسوايۍ شريکوو چې مونږ يې په لاس کې لرو.

په ۲۰۱۳م د نومبر په ۱۶مه داعشيانو په حلب کې په يوه روغتون بريد وکړ او محمد فارس، زخمي مجاهد، هغه چې د سوريايي رژيم سره په جګړه کې زخمي شوی ؤ، په زخمي حالت کې هلته پروت، دوی يې سر په چاړه له تنه جدا کړ او شهيد يې کړ.



په ۳۱/۱۲/۲۰۱۳م د احرارالشام مربوط یو ډاکټر ابوریان مړی د داعش له زندانه په داسې حال کې ترلاسه شو چې په بدن يې د تعذیب ننښې نښانې ښکاریدې.



په۱۵/۱/۲۰۱۴م د خلافت له زندانه بنديان راخوشي شول چې په بدن يې د تعذيب داسې نښانې وې.



په رقه ښار کې دا ميرمن د خپلې ورانې جونګړې مخې ته ولاړه ده او په چيغو چيغو ژاړي. د دې بوډۍ جرم دا ؤ چې ځوی يې د احرارالشام غړی ؤ، چې د خلافت مدعيانو په همدې جرم د دې بوډۍ جونګړه ورورانه کړه.




ترکیه چې په ناټو کې غړیتوب لري او داعش یې لوی کافر بولي، تیر کال د ترکیې پوځ د سوریې په منبج ښار کې د خپل نیکه سلیمان شاه مړي د رایستلو لپاره عملیات ترسره کړل. دا سیمه د داعش د واک لاندې سیمه ده خو هغوی دا عملیات په ډاډمنه فضا کې ترسره کړل او د هیڅ کومې امنیتي ستونزې سره مخ نه شول بلکې دواعشو یې امنیت تأمین کړ. دا پیښه هغه وخت رامینځ ته شوه چې د خلافت زمریانو حتی د یونس علیه السلام قبر هم په دې دلیل ونړاوه چې دا د شرک ځلي دي. خو د ترکانو د نیکه قبر وساتل شو او مړی یې ترکي پوځ ته د دوی په بدرګه وسپارل شو. تر اوسه هم معلومه نه ده چې د کومې معاملې په اساس د ترکانو د نیکه د شرک ځلی وژغورل شو او د یونس علیه السلام قبر ونړول شو.




ابو عبدالرحمن العراقي چې تاسې یې په لاندې تصویر کې وینی د بعث د ګوند غړی ؤ. د امریکایانو د اشغال سره هم مهاله نوموړي له عراق هالینډ ته پناه یوړه او هلته میشت شو. خو کله چې بغدادي واک ته ورسیدو نو د داعش په صفونو کې د بعثیانو جلب شروع شو، چې ابوعبدالرحمن هم له هالینډ څخه راغلو ترڅو دلته د خلافت په نوم د مسلمانانو او مجاهدینو وینې اوبهوي. همدغه ؤ چې له راتګ سره سم نوموړی سوریې ته راولیږل شو او هلته یې د القاعدې د مجاهدینو

سره جګړه پيل کړه. نوموړی اوس په خلافت کې د مسلمانانو او مجاهدينو سرغوڅونکی بلل کيږي. د ده مخې ته پراته پنځه واړه سرونه د جبهة النصرة د مجاهدينو دي.



د داعش په دين کې يواځې هغه وخت يو مسلمان د دوی له وحشت او ظلم څخه نجات موندلی شي چې د دوی په وړاندې په خپل کفر اعتراف وکړي. د صکوک الغفران په نوم هغه پاڼې اوګورئ چې داعش يې په هغه خلکو تقسيموي چې دوی ته تسليميږي او يا په خپل کور اوسيدل غواړي.



بسم الله الرحمن الرحيم

ورقة استتابة

حضر لدى الأخ الشرعي ..................المدعو خالد صالح ... بن محمد ...

واقر على نفسه بالكفر كونه متولياً للكفار وتعهد بعدم حمل السلاح على الدولة الإسلامية في العراق والشام مع اي فصيل كان ، فيرجى من عناصر الدولة عدم التعرض له

المسؤول الشرعي

04/22/2016

د پورتني مضمون ژباړه:

د شرعي ورور...................... په وړاندې خالد صالح بن محمد حاضر شو او په خپل ځان يې د کفر اعتراف وکړ(چې زه کافر شوی وم) ځکه نوموړی له کافرانو سره دوستی کونکی ؤ. نوموړي ژمنه کوي چې د اسلامي دولت په وړاندې به د هيڅ ډلې په ملاتړ وسله نه پورته کوي نو د دولت له غړو غوښتنه کيږي چې نوموړي ته ضرر ونه رسوي.

اوس به يې هم ډير عقل مسخ شوي نه مني چې د بغدادي ډله خوارج نه دي. پخوانيو خوارجو هم له حضرت علي رض سره د جنګ د نه کولو لپاره شرط ايښی ؤ چې نوموړی به په خپل ځان د کفر اعتراف کوي .(تاريخ الطبري بتصرف ج۵ص۷۴ ،البدايةوالنهاية ج۷ص۴۸۳)

دواعش چې کله د رقه ښار ته ننوتل او هلته يې د احرارالشام هغه مجاهدين چې د اسد د نظام ۱۷ فرقه يې محاصره کړې وه په غدر شهيدان کړل، دوی لومړی مجاهدينو ته د صلح او امان وړانديز وکړ او وروسته يې ورسره غدر وکړ او ټول يې د پسونو په څير ذبح کړل.



تاسې به فکر کوی چې دا وحشت به سربانو د بوسنيا د مسلمانانو په وړاندې ترسره کړی وي. يا به فکر کوی چې دا به د منځنی افريقا مظلوم مسلمان ماشومان وي چې نصرانيانو وژلي ؤ. شايد اوايی چې دا به د بورما مسلمان وي چې د بودايانو له لورې ورسره دومره وحشت شوی دی. ممکن فکر وکړی چې دا به دپنجوايی د پيښې قربانيان وي هغه چې د يوه ځناور د وحشت په ژرنده کې دل شوي ؤ. نو آيا دا هغه ماشومان دي چې د شينډنډ په امريکايي وحشت کې وژل شوي ؤ؟ يا هغه ماشومان دي چې په عراق کې د امريکايی ځناورانو له لورې وژل شوي دي؟ نه نه، بلکې دا ماشومان د هغه چا له لورې وژل شوي چې ځان د ټولو مسلمانانو خليفه بولي او د اسلامي امت د يو بغله کشتۍ د نجات درواغجنې ډنډورې غږوي. دا ماشومان د هغه چا له لاسه وژل شوي چې ځان د ابوبکر، عمر، عثمان، علي، رضی الله عنهم په منصب ناست بولي. دا ماشومان د بغدادي دلښکر له لورې وژل شوي دي.




او دا هم د ابو محمد الفاتح د کورنی ښځې او ماشومان چې د بغدادي د عسکرو په لاس وژل شوي دي. ايا خلافت د داسې خلکو په لاس قايميدی شي؟ ايا خلافت د مسلمانو ماشومانو په وينو قايميږي؟




د خلافت عسکرو د جبهة النصرة ۱۰۰ هغه مجاهدین چې د بشار د رژیم سره په سنګر کې پراته ؤ، په مرکدة ښارکوټي کې اوژل.



داعش د حلب د حریتان په سیمه کې د سیمې بې دفاع ولسي وګړي خپلو قرارګاؤ ته بوتلل او د دوی له وتلو وروسته د دې خلکو مړي په یوه ډلییز قبر کې اومندل شول.



داعش تر اوسه د جبهة النصرة ۱۴۰۰ غړي په شهادت رسولي چې ۲۹ يې هغه لوړپوړي قومندانان دي چې امريکايانو يې په سر مليونونه ډالر جايزه ټاکلې وه، دا هغه احصائيه ده چې د تروريزم ضد جګړه کې ښکيلو دولتونو تر اوسه نه ده ترلاسه کړې.



اسلامي امت بايد پوه شي چې داعش په سوريه کې دومره مجاهدين وژلي چې د بشار نظام هغومره مجاهدين نه دي وژلي. لاندې شميرنه تر ۲۰۱۴م کال پورې ده. داچې له هغې وروسته داعش څومره کدرونه وژلي په مښکنيو ليکنو کې مو تشريح کړل.

| أسم الفصيل | عدد الشهداء | عدد الجرحى |
|---|---|---|
| الجبهة الإسلامية | ٩٥٠ | ١٧٠٠ |
| جبهة النصرة | ٥٠٠ | ٤٥٠ |
| جيش المجاهدين | ١٢٠ | ٢٠٠ |
| جبهة الأصالة والتنمية | ٣٠ | ٦٠ |
| لواء عمر المختار | ٥٠ | ٨٠ |
| ألوية الفرقان | ٤٠ | - |
| عاصفة الشمال | ٧٥ | - |
| جيش مؤتة | ٢٥ | ٦٠ |
| فصائل أخرى | ٢٥٠ | ٣٠٠ |
| المجموع | ٢٠٠٠ | ٢٨٥٠ |

په لاندې انځور کې وينی چې د داعش قواوې د رقه ښار څخه بوکمال ته د جبهة النصرة سره د جګړې لپاره د السخنة له ښارګوټي تيريږي. السخنة ښارګوټی د بشارالاسد د رژيم په لاس کې دی، نو څه فکر کوی چې د دواعش چې د السخنة له ښاره تيريږي څه راز پې ترشا دی؟




د داعش د ټويټر او فيسبوک دجالي فعالين څومره له هاليووډ او باليووډه الهام اخلي؟! د ديرالزور په الشحيل ښارګوټي کې د داعش په يوه ځانوژونکي بريد کې ښځې او ماشومان اوژل شول خو د ټويټر داعشي دجالانو دا مبارک عمليات ونومول او د مجاهدينو د يوې قرارګاه د له منځه وړلو ادعا يې وکړه.




په سوریه کې د ائتلاف طیارو داسې لویشت ځمکه پرینه ښوده چې هغه یې بمبارد نه کړه، ولې د داعش له دې اسمان څکو ودانیو څخه یې سترګې پټې دي. دا ودانۍ په تنظیمي شعارونه پوښل شوي دي چې له ورایه معلومیږي چې دا د داعش قرارګاه ده. ولې یې مؤتلفین نه په نښه کوي؟ له همدې ځایه مورِ وایو چې نړیوال کفر د داعش په وړاندې جنګ کې ریښتینی نه دی. دوی نه غواړي داعش یومخیز له منځه یوړل شي او دومره کمزوری شي چې د نړۍ په لربر کې جهادي خوځښتونه ونه ننګوي. په عین حال کې نه غواړي چې دومره قوت لاسته کړي چې لویدیځ مستقیماً وکوابښي. په لاندیني انځور کې وینی چې داعش په خپلو نفوذي سیمو کې ځرګندې اداري ودانۍ او قرارګاوې لري.



په شام او عراق کې د القاعدې ډېر لوړ لوړ کدرونه په نښه شول او د ائتلافیانو له لوري په شهادت ورسول شول خو د رقه په ښار کې د قصرالخلیفة په نوم ماڼۍ چې د داعش د مشرانو د یوځای کیدو مرکز بلل کېږي او د داعش مشر بغدادي هم وخت ناوخت دې ماڼۍ ته تګ راتګ کوي خو د ائتلاف له هغه سلګونه پروازونو څخه د ا ماڼۍ په جادویي ډول خوندي ده چې یو میتر سوریایي ځمکه یې له ګوزاره محفوظه پاتې نه شوه. څه فکر وکړو آیا په معمایي ډول اومنو چې مؤتلفین د داعش سره په جګړه بوخت دي؟



دا هم په رقه ښار کې د نصرانیانو هغه عبادتځاي چې داعش ترې اوس د اسلامي بلنې په نوم مرکز جوړ کړی او د داعش سلګونه جنګیالي دلته میشت دي چې د امریکایي او ائتلافي جنګي الوتکې پرې کار نه لري.




د خلافت زمریانو د لواء التوحيد مجاهدين ذبح کړي او سرونه يې د پخوانيو خوارجو په څير څورند کړي او يادګاري انځورونه يې ورسره اخيستي.



د داعش جاهل قاضيان د قضا له اصولو ناخبره دي چې ښه بيلګه يې د يو دولس کلن ماشوم چې لا يې په مخ ويښتان نشته په دې تور اعدام کړی چې نوموړي د ښار يوه ښځه ښتولې وه چې درحقيقت دا ماشوم د احرارالشام د يوه غړي ځوی ؤ چې

په همدې جرم په دار ځړول شوی دی.




داعش د سورېې ولسي وګړي په عامه ځايونو کې په دې جرم په دار ځړوي چې دوی له جبهة النصرة يا احرارالشام يا نورو سوريايي جهادي ډلو سره خواخوږي لري.




د داعش په زندانونو کې له مجاهدینو سره داسې وحشي چلند کیږي چې امریکایانو به په ګوانتنامو او ابو غریب کې هم نه وي کړی، خو بل لورې ته بیا دوی هغه فرنسویان چې د دوی سره بندیان ؤ په ډیر عزت خلاص او خپلو کورونو ته واستول په داسې حال کې چې فرانسوي دولت په صومالیه کې د دوی د نیول شویو کسانو په بدل کې د القاعدې سره هیڅ معاملې ته تیار نه ؤ.



ابو الهیجاء چې د داعش له لوري د اعزاز والي دی، پخوا د امریکا د جمهور رئیس مرستیال جان مکین باډي ګارډ ؤ. لاندې تصویر ته زیر شی او د فوټوشاپ ماهرین دې قضاوت وکړي چې دا انځور جعلي دی؟

ابو الهیجاء د اعزاز والي، د جبهة النصرة په ضد یې هلته د جنګ قومانده په غاړه لرله، چې وروسته داعش په دې تور د ده د نیولو امر صادر کړ، چې نوموړی د لویدیځ د استخباراتو جاسوس دی. چې نوموړی اردن ته په داسې حال کې په تیښته بریالی شو چې د بغدادي په قیادت کې یې د سلګونو مخلصو مجاهدینو وینې بهولې وې.



د بعث ګوند تازه مفتیانو د عربي هیوادونو څخه ورغلي مجاهدین په دې دوکه کړل چې ګواکې د دوی سره د خپل ملکونو پاسپورتونو کفري شعارات دي او دا باید د کامرو مخې ته څیرې کړل شي. له دې څخه د بعثي جنرالانو مهم هدف دا ؤ تر څو د عربي دولتونو څخه راغلي ځوانان بیا خپلو ملکونو ته د تږ لار ونه لري چې یا به همدلته وژل کیږي او یا به جنګیږي. دا په داسې حال کې ده چې د حجي بکر له وژل کیدو وروسته د ده له کوره د ایران پاسپورټ ترلاسه شو او نور ډیر د داعش مشران پاسپورتونه لري چې پرې ځینو هیوادونو ته سفر کوي او ډیر ځله لیدل شوي چې د داعش مشران یا ترکیې یا اردن یا کوم بل هیواد ته تښتیدلي دي، چې په نږدې تیر کې د ابوالهیجاء تیښته او د داعش د تیلو د وزیر ترکیې ته تیښته وه.




په دغه ځوان د داعش د مفتیانو په حکم، شرعي حد قایم شوی، تاسې یې وینی، ایا په شرعي حد کې به محدود په دورو دومره سخت وهل کیږي؟ بیا نو دوی وایي چې موږ خو د الله حدود قایم کړي دي.




دواعش چې کله د بشار د نظام لوړپوړي جنرالان ونیسي د معاملې په بدل کې یې خوشي کړي خو د سورېې د مجاهدینو بندیان بیا فورا ذبح کوي. لاندې تصویر کې هغه سوریایي جنرالان وینی چې داعش سره اسیران شوي ؤ خو وروسته خوشي شوي.




عائشه چې د داعش یو ځانمرګی یې کور ته ورننتلی ؤ یواځې په دې جرم سوری سوری شوې چې ورور یې د جبهة النصرة غړی ؤ.



# يولسم فصل

# (د داعش مطبوعاتي جګړه)

مطبوعاتي جګړه چې په سرې جګړې هم یادیږي د نظامي جګړې برابر ارزښت لري. دا جګړه نن نه ده بلکې ډیر له پخوا راروانه ده، څومره چې نظامي جګړه اوږده تاریخچه لري همدومره مطبوعاتي جګړه. څنګه چې نظامي جګړه خپل ماهرین غواړي همدا ډول مطبوعاتي جګړه د دې جګړې د ماهرینو له لورې پرمخ بیول کیږي.

په ۲۰ مه میلادي پیړۍ کې ترټولو مؤثره مطبوعاتي جګړه امریکایانو پرمخ یوړه چې له امله یې زموږ ډیر ځوانان بې لارې کړل. اشغال یې ازادي ازادي یې اشغال معرفي کړه، غلامان یې ازادي خواه ازادي خواه یې غلامان معرفي کړل، زموږ ملي ارزښتونه ملي نوامیس یې له خاورو سره خاورې کړل، خو تاریخ ته که ځیر شو، هر وخت د باطل لومړۍ حمله زوروره وي خو وروسته یې زور، مؤثریت اوبه شي او خلکو ته یې ناروا والی روښانه شي.

د داعش میډیایي جنګ د لویدیځ څخه راغلي هغه نومسلم ځوانان پرمخ وړي چې د دې جګړې زده کړې یې هملته په لویدیځ کې سرته رسولي، بلکې ځینې یې د بالیووډ او هالیووډ فلمي ستوري ؤ چې دلته له راتګ سره سم یې په فوتوشاپي جګړه پیل وکړ. د خپل مخالف په وړاندې له ټولو پولو اوتل او دا دی دا لړۍ تراوسه دوام لري خو مؤثریت یې ځکه کم شوی چې موږ وړاندې اویل چې د باطل زور ډیر زر اوبه کیږي.

د داعش د مطبوعاتي چارو مسئول سوریایي الاصله امریکایی احمد ابوسمرة په غاړه لري. احمد چې اصلا د حلب دی، ټول عمر په امریکا کې تیر کړی او هلته یې لوړې زده کړې کړي.



داعش په میډیایي برخه کې ډیرې پانې او ادرسونه لري چې ځینې یې رسمي دي چې عبارت دی له الفرقان، اصدارات الخلافة، الاعتصام، الحیاة، الأعماق او غیر رسمي چې عبارت دی له مؤسسة البتار، مجلة دابق، عبوة لاصقة، ترجمان الأساورتي،سیرالمعارک، النصرة الشامیة او داسې نور. داعش د میډیا په زور وکولی شول چې په لویدیځ کې د القاعدې د الذئاب المنفردة په نوم پروګرام شنډ کړي. داعش وتوانید چې د لویدیځ څخه د هجرت په نوم ځوانان یوې محدودې ساحې ته راټول کړي ترڅو غربي شیطانان په خپلو ملکونو کې د ارام ساه واخلي.

داعش په ټولنیزو رسنیو کې ډیر فعال بریښي چې په حقیقت کې د دوی د میډیا په افرادي قوت دلیل نه دی بلکې د دوی مطبوعاتي فعالان هر یو په لسګونه حسابونه لري چې په یوه وخت کې له ټولو څخه نشرات کولی شي. د دواعشو د مطبوعاتي جګړې لومړی اړخ په ټولنیزو رسنیو کې ډیر حسابونه فعالول دي تر څو خلک فکر وکړي چې داعش په ټولنیزو رسنیو کې خورا ډیر فعالان لري. لاندې یې په مستند ډول اوګورئ.




جيش الانصار يو ټويټري فعال دی. نوموړی په خپل اعلان کې وايي: هغه ورونو چې ډير حسابونه لري بايد له ټاکلي نيټې سره سم خپل ټول حسابونه فعال کړي. لاندې له دې وروسته ټويټ اوګورئ




د پورتني ټويټ په ځواب کې سنية عراقية ارهابية چې د يو ټويټري داعشي حساب دی او بل سيف الدولة ليکي:له ١١ حسابونو سره حاضر يم .

د داعش ټويټري فعالان د خپلو اکاونټونو په پروفايلونو عام انځورونه لګوي د بيلګې په ډول د دوی ډير حسابونو ته فوټبال انځور لګيدلی وي. ځينو نورو د ژوند د نورو مختلفو ورځني کارونو انځورونه لګولي تر څو خلکو ته وښيي، دوی د ټولنې په هر قشر کې نفوذ کړی.

د داعش د ټولينزو رسنيو ډير فعالان د ښځو په نوم حسابونه جوړوي تر څو له يوې خوا خپل هراړخيزوالی خلکو ته څرګند کړي او له بلې خوا له لويديځ او نورو هيوادونو څخه ښځې راجلب کړي. لاندې تصوير ته ځير شئ




الخنساء الموحدة چې يو داعشي فعال دی، يو څوک ترې پوښتنه کوي، چې تاسو خو پخوا له السحاب سره کار نه کولو؟ داعشي په ځاي د دې چې فکر يې شي چې ما خو د ښځې په نوم حساب جوړ کړی، بايد په خطاب کې د ځان لپاره ښځينه ضمير استعمال کړم، د نر ضمير ځان ته استعمالوي او غير اختياري خپل حقيقت جوتوي او وايي: من قال لک أني اعلامي. نوموړي ته په کار وه چې د اعلامي په ځای يې اعلامية لفظ کارولی وای.

د داعش د ميډيايي جنګ بله برخه په خيالي او فرضي شيانو اتکاء کول دي چې ډېر وخت دوی داسې خوبونه نشروي چې ليدونکي يې معلوم نه وي او دا  دوی د نويو ځوانانو د دوکه کولو غوره وسيله بولي. لاندې انځور ته ځير شئ.



ابو سلطان لیکي: خوب او زیری: رسول الله صلی الله علیه وسلم روان ؤ او د ده شاته په زرګونه خلک روان ؤ، خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم شاته متصل ابوبکر البغدادي روان ؤ.




ابومصعب داعشي لیکي: یو فرانسوي ورور په زخمي او بې هوښه حالت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب لیدلی چې فرمایل یې: اسلامي دولت به باقي وي.




ابو العیناء الخراساني لیکي: په هغه ذات قسم چې اسمان یې بې ستنو پورته کړی، یوه ورور په خوب کې رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی چې ورته یې ویلي: بغدادي او د ده ملګرو ته اوایه چې محکم شئ.




پورتني ټويټ کې محمد السبيعي وايي:په الله قسم چې يو صالح انسان خوب ليدلی چې بغدادي ته به الله تعالی په سمندر هم واک ورکوي او امريکا به په سختو ويرونکو وسلو له منځه يوسي.

داعش په مطبوعاتي جګړه کې ځليدونکي شعارونه کاروي، جذباتي انځورونه پورته کوي تر څو خلک اوغولوي. څه موده وړاندې چې کله دوی د سايکس-پيکو د حدودو شعار پورته کړ، ډيره مطبوعاتي ګټه يې ترې پورته کړه او مسلمانانو ته يې داسې ښکاره کړه چې ګني همدوی يواځې د دې پولو ماتوونکي دي. انځور ته ځير شئ




د سايکس-پيکو پوله د هيوادونو ترمينځ کوم ديوالي شکل نه لري نه نور کوم لوی لوی موانع د دې پولو په اوږدو کې نصب شوي چې ودې نړول شي، بلکې سيمييز نومونه د پولې د پورې او راپورې غاړې لپاره ټاکل شوي دي خو دواعشو په خوشې دښته کې بلډوزران په کار اخته کړي او ترې عکاسي کوي او تبليغوي چې دوی د سايکس-پيکو پولې ونړولې.




ځومره خندونکي؟ عدناني په شړه دښته کې د کامرو مخ ته په بلډوزر سپور دی او د سایکس-پیکو حدود نړوي. همدا فرضي او خیالي شیان د دوی د میډیا برخه جوړوي.

## د خپلو مخالفینو په وړاندې د داعش مطبوعاتي جګړه.

کله چې داعش اوغواړي چې یو ځوک په مطبوعاتي ډګر کې په نښه کړي، لومړی د ده د رسوایۍ لپاره د داعش غیر رسمي مؤسسات په کار لاس پوري کړي. په وړاندې یې جعلي کلیپونه، د فوټوشاپ انځورونه جوړوي. د بیلګې په ډول کله چې دوی اوغوښتل چې د شیخ ظواهري په وړاندې سنګر ونیسي، لومړی د داعش غیر رسمي مؤسسات لکه ترجمان الاساورتي مؤسسة البتار....... د ظواهري بدنامولو لپاره تبلیغات پیل کړل چې وروسته د دوی رسمي ادرسونو د ده په اړه متې رابډ وهلې چې بیا د وروستي قدم په توګه عدناني په خپلو بیانونو کې هغه کله د سفیه، کله منحرف، کله ګمراه او دا دی په خپله وروستي لیکنه کې یې نوموړی کافر اوباله (العیاذبالله).

داعش په ټویټر کې د خپلو مخالفینو په نوم لومړی جعلي اکاونټونه جوړوي وروسته له همدغه اکاؤنټونو داسې شیان نشروي چې بیا دوی خپلو پلویانو ته همدا شیان د دوی د ګمراهۍ په دلیل کې پیش کوي. څه موده وړاندې دواعشو په ټویټر کې د شیخ ابومحمد المقدسي او ابوقتادة الفلسطیني او دکتور عبدالحلیم په نوم اکاونټونه جوړ کړل له دغو اکاؤنټونو یې کفریات نشر کړل او وروسته یې په خپلو حسابونو کې د دوی په خلاف دا شیان د دلیل په ډول وړاندې کړل.

څه موده وړاندې دواعشو د جبهة النصرة د حلب د څانګې د رسمي حساب په نوم جعلي حساب جوړ کړ او دا اعلان یې پکې نشر کړ.

Forwarded message
From 15 ترجمان الأساورتي | القناة

مراسل حلب
عاجل

| اعلان الاستنفار العام |

نعلن الاستنفار العام لجميع المجاهدين لصد تقدم الخوارج (جماعة الدولة) في ريف حلب الشمالي، وارسال تعزيزات إلى مدينتي اعزاز ومارع.

نجدة جبهة الجولاني المرتدّة لإخوانهم صحوات فسو
الحمد لله الذي فضح هؤلاء الكلاب

1 3:20 AM

دواعشو په سوریه کې له ټولو پاځون والو د کومک غوښتنې اعلان د پورتني جعلي ادرس څخه خپور کړ چې وروسته دواعشو همدا جعلي اعلان د جبهة النصرة د ارتداد د دلیل په توګه وړاندې کړ.

Forwarded message
From || قناة سير المعارك ||

مراسل
حلب

عاجـــل



| اعلان الاستنفار العام |

نعلن الاستنفار العام لجميع المجاهدين لصد تقدم الخوارج (جماعة الدولة) في ريف حلب الشمالي، وارسال تعزيزات إلى مدينتي اعزاز ومارع.

📍 فصائل المعارضة في هذا الوقت تعيش برعب لا مثيل له
وهي على اعلى درجة من الاستنفار
"جبهة النصرة" شعرت بالخطر الذي يواجهه شركائهم فأعلنت الاستنفار ايضا واستقدمت تعزيزات للريف الشمالي !!
⭕ سير المعارك

142 8:39 PM

Forwarded message
From الباب الحدث Albabalhadth

مراسل
حلب

عاجـــل



| اعلان الاستنفار العام |

نعلن الاستنفار العام لجميع المجاهدين لصد تقدم الخوارج (جماعة الدولة) في ريف حلب الشمالي، وارسال تعزيزات إلى مدينتي اعزاز ومارع.

مقاتلوا النصرة يعلنون النفير العام لصد مقاتلي الدولة في ريف حلب الشمالي!
كيف سينتقلون من ادلب الى حلب من دون علم تركيا ومساعدة تركية
بل كيف لهم ان يقاتلوا والطيران الصليبي يقصف الخوارج حسب فهمهم!

2.8K 3:20 AM

چې وروسته د جبهة النصرة له لورې دا حساب جعلي وبلل شـو او رد کړل شـو.

حسام الأموي retweeted



من المسلمين @__Moslim 12h

#تنبيه

بيان مزور يتدوله انصار تنظيم الدولة

#جبهة_النصرة





 11
 6


په ټويټر کې د ابوعبدالله الافغاني په نوم کوم خليج ميشتی تاجر په امارت پسې بدې ردې وايي. نوموړي د بغدادي سره بيعت کړی خو خپل بيعت نه څرګندوي او داسې ښيي چې ګواکې نوموړی اوس هم د اسلامي امارت خواخوږی دی خو په عين حال کې په اسلامي امارت بې ځايه تنقيدونه کوي چې همدا تنقيدونه بيا د داعش ميډياوال د دليل په ډول وړاندې کوي.




ابوعبدالله وايي: د ملا عمر څخه وروسته د ملا منصور په پاکستان کې ټاکنه او د پاکستان په هوايي ډګرونو کې د ده ټک راټک شاته ډېر رازونه لري.

يمني چي په ټولنيزه ميډيا کې يو داعشي فعال دی. لاندې ترې ليکي: دا خبرې اوس تاسو ته ګټه نه درکوي تاسو ته اسلامي دولت نصيحت کړی ؤ او د ده کفر يې درته واضح کړی ؤ.

يعني يمني داسې ښيي چې ګني ابوعبدالله داعشي د امارت کوم کس دی.

د داعش میډیا عیناً د لویدیځي میډیا په څیر غواړي حقیقي جهاد او مجاهدین بدنام کړي. دوی د لویدیځ د مطبوعاتو په څیر د خپل مخاالف په وړاندې هیڅ اخلاقي پوله نه پیژني او داسې څه وایي چې شاید وروسته به دوی خپله هم پرې شرمیږي.

یمني کذاب د امیرالمؤمنین له شهادت وروسته داسې ولیکل:




دا چې لویدیځو استخباراتي کړیو تیر کال په یوې خپل منځې نښتې کې د امیرالمؤمنین د وژل کیدو ادعاء کړې وه چې وروسته امیرالمؤمنین په یوه صوتي پیغام کې هغه رد کړه خو د داعش مطبوعاتي دجالانو د هماغه لویدیځو ویبپاڼو لینکونه د امیرالمؤمنین د شهادت په ورځ راؤړل او استدلال یې کاوه چې ګنې نوموړی پخوا وژل شوی ؤ چې طالبانو یې مرینه اوس جوته کړه خو دوی دومره د دین له احکامو ناخبره دي چې فکر نه کوي چې د کافر ګواهي د مسلمان په حق کې کله قبلیدی شي؟




څومره حماقت؟ يمني وايي: طالبانو له امريکايانو غوښتي ؤ چي د دوی د مشر د وژلو پره واخلي او اعلان وکړي. دا نظر خو دلته په کابل کي د ميشتو سکشويانوهم نه دی چي موږ يې ډير د ډالرو ليونيان بولو.




رښتيا ده چې درواغجن حافظه نه لري! دا کذاب پورته يوځل وايي چې ملامنصور په خپل منځي نښته کې وژل شوی خو په وروسته پيراګراف کې د يو څو ثانيو په ځنډ په خپله د ځان تکذيب کوي او وايي چې نوموړی په يوه امريکايي بريد کې په داسې حال کې وژل شوی چې له ايران راروان ؤ.

## د داعش مطبوعاتي درواغ

ترجمان الاساورتي د داعش د مطبوعاتي فعالينو يوه ډله ده چې په دې نوم نشرات کوي. دوی په درواغو دومره شهرت لري چې آن د ده په عامه نشراتو هم خلک باور نه لري. څه موده وړاندې د سوريې په حلب کې د تجمع عشائر سوريا په نوم د اربکيانو يو مشر اوژل شو چې د څيرې له اړخه د داعش يوه غړي ابوزکريا التونسي ته شوی ؤ. ترجمان الاساورتي په خپل ټويټ کې وليکل چې د جبهة النصرة مجاهدينو يو تونسي مهاجر وژلی دی.




د سيف الدولة په نوم بل داعشي داسې وليکل.




نوموړي دا کس مهاجر بللی او د ده وژونکي يې مرتدين بللي.

خو د مقتول او ابو زکريا ترمينځ فرق اوګورئ




د مقتول د ږيرې ويښتان سپين دي خو د تونسي ويښتان تور دي.

په لاندې انځور کې یې د غوږونو ترمینځ فرق اوګورئ




دوی تل په همداسې بې بنسټه تورونو غواړي خپل مخالف بدنام کړي.

د داعش د مطبوعاتي ګمراهۍ بل اړخ د خپل مخالف په تکفیر کې د لویدیځې میډیا په راپور باور کول دي بلکې دوی د مجاهدینو د تکفیر لپاره تل د لویدیځو استخباراتي کړیو دروغجن راپورنه د دلیل په ډول وړاندې کوي.




MUTE

يمني دجال د الجزيرې پاڼي راپور د احرارالشام د ارتداد لپاره د لاسوند په توګه وړاندې کړی.




الشرق الاوسط ليکي:د ايران انقلابي ګارد وايي : ملا منصور د وژل کيدو وړاندي د دوؤ مياشتو راهيسي له ايران سره خبري اتري رواني کړي وې، چې يمني دجال د دې سيکولر ورځپاڼي راپور پرته له دې چې د کره والي تحقيق پې وکړي نشر کړی او لاندي پې ترې ليکلي: د طالبانو او القاعدي وژل شوی مرتد امير (العياذ بالله) د ايراني مجوسيانو په ميلمستيا کې ؤ او له دوی سره پې خبري رواني وې.




النصرة الشامية د رویټرز راپور نقل کړی، چې وايي: د سوريې په حلب کې د ائتلاف ځواکونو وسله والو ته د هوا له لارې وسلې راغورځولې دي، چې د سوريې ټولو اسلامي ډلو د تکفير لپاره د داعش مطبوعاتي دجالان دا راپورونه کافي بولي.

# دولسم فصل

## (داعش له دننه څخه)

## د داعش حازميه او بنغليه دوه ډلې

له څه موده راهیسې په عربي میډیا کې پرلپسې داسې راپورونه ورکول کیږي چې د داعش تر مینځ اختلافات راټوکیدلي. دا اختلافات تر کومې کچې دي او پایلې یې څه دي؟

داعش د تشکیل له پلوه په دوو څانګو ویشل شوی، چې دوی یوه ته عسکري قیادت وایي چې عبارت ؤ له حجي بکر، ابومسلم الترکماني، ابوعلي الانباري، عاصي العبیدي، ابومهند السویداوي، ابوعبدالرحمن البیلاوي،عمرالشیشاني، ابوأیمن العراقي، ابواسامة العراقي چې د شیشاني پرته ټول د صدام د پوځ جنرالان دي او شیشاني بیا د ګورجستان د استخباراتو پخواني ضابط ؤ. په دوی کې ډیری یې وژل شوي خو د داعش مؤسسین همدا خلک دي. او بل ته یې شرعي قیادت وایي، چې عبارت ؤ له عثمان آل النازح، عمر القحطاني، ترکي البنغلي، ابوجعفرالحطاب، ابومصعب التونسي، احمدابوعمر الحازمي، ابوخباب العراقي، ابومیمون العراقي، ابوعمرالکویتي، ابوعبدالله الکویتي. خو د دواړو له منځه بیا مجلس الشوری جوړه ده چې د دوی په ژبه د امیر د نصب او عزل واک لري او په ترکیب کې یې شپږ غړي دي چې د وخت او زمان په مقتضی هغه بدلیږي رابدلیږي. د بیلګې په ډول د خلافت د اعلان په وخت کې د مجلس الشوری غړی دریې له عسکري قیادت څخه ؤ چې حجي بکر، ابوعلي الانباري، عاصي العبیدي او دریې له شرعي قیادت څخه چې ابومحمدالعدناني، عثمان آل النازح، عمرالقحطاني ؤ.

کله چې حجي بکر په تل رفعت کې د لواء التوحید مجاهدینو له خوا اوژل شو، د مجلس الشوري څوکی ته یې ابومسلم الترکماني پورته کړل شو، همدا ډول کله چې انباري اوژل شو ځای یې ابوأیمن العراقي ونیوو. چې د عسکري قیادت پورته ذکر شوي کسان ټول په خپل توبت د مجلس الشوری غړیتوب ترلاسه کړ. عینا د شرعي قیادت په آړخ کې هم همداسې ده کله چې عثمان آل النازح اوژل شو ځای یې ترکي البنغلي ونیؤ.

### د تکفیر العاذر باالجهل مسئله

د تکفیر په آړه مو د دې لړۍ په شپږمه برخه کې تفصیلي څیړنه کړې وه چې اهل السنة د تکفیر د څلورو موانعو د شتون په صورت کې په یو چا د کفر حکم رواء نه بولي چې یو له هغه څلورو موانعو څخه جهل ؤ. هغه څوک چې جاهل معذور بولي هغه ته عاذر بالجهل ویل کیږي چې د ټولو اوسنیوخوارجو په باور جهل عذر نه دی خو د عاذر بالجهل په اړه د دوی تر مینځ اختلاف دی. حازمیه وایي: عاذر بالجهل هم کافر دی. بنغلیه وایي: عاذر بالجهل کافر نه دی په دې معنی چې که یوڅوک د ده جهل په وجه څوک کافر ونه بولي نو همدا سړی په خپله کافر ګرځي.

**حازمیه** ډله د احمد بن عمر الحازمي المکي پلویان دي. نوموړی د سعودي د مکې مکرمې اوسیدونکی ؤ چې لومړی تونس ته لاړ اوهلته د تونس په هغه ټولنه کې چې څلویښت کاله یې د زین العابدین د کورنی لاندې په جهالت کې تیر کړي ؤ، په

خارجي فکر ښورولو پيل وکړ چې له هغه ځايه راوشړل شو او عراق ته راغی. د داعش سره يوځای شو او دلته يې د خارجي فکر په ښورولو پيل وکړ. دلته يې ډير همفکران پيدا کړل چې ډيری يې په اسلامي دولت کې لوړپوړي قاضيان او شرعيان ؤ. ابومصعب التونسي، ابوجعفرالحطاب، ابوعمرالکويتي، ابوعبدالله الکويتي، ابوميمون العراقي، ابوخباب العراقي، هغه لوړپوړي حازميان دي چې په اسلامي دولت کې لوړې دندې لري.

بنغليه بيا د ترکي البنغلي پلويان دي چې د ابوهمام الاثري او ابوسفيان السلمي په نومونو پژندل کيږي او په ترکي البنغلي شهرت لري. عمرالقحطاني، عثمان آل النازح، او ځينې نور سعودي او خليجي نوعمره شيخان بيا د ترکي البنغلي پلويان دي .

د بنغليانو عقيده دا ده چې عاذر بالجهل کافر نه دی، په دې معنی چې که يو څوک په ناپوهۍ سره يو مکفِّر(کافروونکی) کار ترسره کړي هغه کافر دی خو که يوڅوک دا سړی کافر ونه بولي هغه کافر نه جوړيږي. بنغليان او حازميان په خپل مينځ کې په دې يوه خوله دې چې ناپوهي د کفر لپاره عذر مانع نه شي جوړيدلی خو په دې کې يې اختلاف دی چې د دې کس کافر نه شميرونکی کافر ده او کنه؟ حازميان عاذر بالجهل هم کافر بولي خوبنغليان بيا عاذر بالجهل کافر نه بولي.

## د دواړو ډلو شاليد

د حازميانو مشر احمد ابوعمر الحازمي د سوريې د مُنبج په جامع جومات کې د جمعې د خطبې پر مهال داسې اويل: العياذبالله

رسول الله صلی الله عليه وسلم د خپل عمر دوه برخې په شرک او کفر کې تيرې کړې وې، د عمر دريمه برخه يې په اسلام کې تيره کړې وه ځکه چې هغه صلی الله عليه وسلم په ۴۰ کلنۍ کې په پيغمبرۍ راوليږل شو او په ۶۳ کلنۍ کې وفات شو نو دا ۴۰ کاله يې په شرک او کفر کې تير کړي ؤ( العياذبالله ثم العياذبالله) د حازمي دغه بيان خلک سخت وپارول او د داعش په دننه کې يې هم غبرګونونه ولرل چې د همدغه بيان وروسته حازمي ژوندی ژک ورک شو او تراوسه يې حال معلوم نه دی چې غالب ګومان دا دی چې نوموړی وژل شوی دی.

د حازميانو د ډلې يو شرعي ابو عمرالکويتي د ديرالزور په جامع مسجد کې په خپل بيان کې داسې اويل: حضرت عمر رض هم هغه وخت مرتد شو (العياذبالله) چې کله يې ابوبکرصديق د مرتدينو له جنګ څخه منع کړو او ابوبکر صديق ته يې اويل: د اسامه رض لښکر مه ليږه. نوموړی بيرته هغه وخت مسلمان شو چې د ابوبکرصديق رأيې ته يې واپسي وکړه او ويې ويل: فلم يزل أبوبکر يراجعني حتی شرح الله صدري لما شرح له صدر أبوبکر.

چون حازمي فکره کسان په داعش کې خورا نفوذ لري نو د حازمي له مرموزې ورکيده وروسته د حازميانو مشري ابوجعفرالحطاب واخيسته او داعش په دې خاطر چې په دولت دننه کې د حازميانو له غبرګونه ځان وژغوري ابوجعفر الحطاب د مجلس الشوری د شرعي قيادت غړی وټاکه.

تر ۲۳/۴/۲۰۱۶م تاريخ پورې داعش په خپلو رسمي او غير رسمي بيانونو کې أيمن الظواهري ګمراه، له مسيره خطاء، أحمق....... باله خو په ۲۳/۴/۲۰۱۶م تاريخ عدناني د أبوميسرة الشامي په نوم د طمس الرموز تر عنوان لاندې د بغدادي په امر يوه اوږده مقاله وليکله چې پکې په لومړي ځل ظواهري کافر اوبلل شو. نوموړې مقاله د خراسان ځانګې پښتو ته هم وژباړله خو د دې ليکنې ترشا کوم اهداف ؤ؟ ولې اوس ظواهري کافر اوبلل شو؟ د دې موضوع عمق په بل ځاي کې ؤ؛ هغه داسې:

ابوجعفر الحطاب چې د حازميانو فکري مشر ؤ د دؤو هدفونو لپاره مجلس الشورى ته پورته کړل شو. لومړی هدف دا ؤ چې فعلا د داعش په مينځ کې د تونسيانو راجلبولو ته ضرورت ؤ چې همدا تونسي د دې لپاره وټاکل شو ترڅو تونسيان راجلب کړي. دويم هدف دا ؤ چې د حازمي له تري تم کيدو وروسته بعثيانو د حازميانو له غبرګون څخه د ځان ژغورلو په منظور حطاب مجلش الشورى ته پورته کړ.

خو له لږې مودې تيريدو وروسته لوبه بدله شوه، حطاب د بغدادي له اجازې پرته سوريې ته راغلو او خپلو ټولو پلويانو ته يې اويل چې بغدادي په دې وجه کافر دی چې أيمن الظواهري کافر نه بولي نو موږ به د ده اطاعت ترهغه وخته کولو چې څرګند کفر(کفربواح) تري نه ؤ صادر شوی. اوس له نوموړي څرګند کفر صادر شو نو موږ نور د ده تر بيعت لاندې نه پاتې کيږو او د خپل ځان لپاره يې د بيعتونو په راټولولو پيل وکړ.

د عاذر بالجهل مسئله بيا ګرمه شوه او په رقه کې د داعش د حازميه او بنغليه ډلو ترمينځ نښته رامينځ ته شوه. بعثي جنرالانو دا ستونزه زر قابو کړه خو بيا هم د داعش شرعي قيادت د حازميانو په ګټه پريکړه وکړه. له بله پلوه داعش د ابوجعفر الحطاب ستونزه هم په ډيره زيرکتيا کنټرول کړه.

ابوجعفر الحطاب د خپلو ۱۵ لورپورو ملګرو سره يوځاي ونيول شو او له څه مودې بند وروسته ټول کسان اعدام شول چې په تويټر کې حازميانو د بغدادي په وړاندې سنګر ونيؤ.



أم العبدين په ټويټر کې يوه حازم پلوه داعشۍ ده هغه د دې هاشتاق لاندې چې .كشف النقاب عن ظلم البغدادي للحطاب .د ابوجعفر الحطاب له نيولو پرده پورته کړه. هغه ليکي: لا تراوسه هم د دولت زندانونه په مؤحدينو او مهاجرينو ډک دي، دقيقا دا په کوم تهمت؟

أم البراء بله حازم پلوه داعشۍ د همدې هاشتاق لاندې داسې ليکي:




مور د نيول شويو کونډو ته دا ډيرې مياشتې د خپلو خاوندانو هيڅ احوال نه معلوميږي، ځکه دوی له مور ځخه لومړني حقوق چې د خپلو بندي خاوندانو سره ملاقات دی، هم اخيستي او نه مو پريږدي چې ورسره ملاقات وکړو. أم البراء او أم العبدين دواړه د تونس دي او د خپلو خاوندانو سره يوځای داعش ته راغلې وې، چې خاوندان يې د حطاب سره يوځاي اوژل شول.

د أم البراء خاوند هم د هغو پنځلسو کسانو په ډله کې ؤ چې د بغدادي په خلاف يې کودتا تنظيم کړي وه او د ده لخوا يې د وژلو امر وشو.

د ابوجعفر الحطاب په وژل کيدو حازميان ډير غوصه شول او د تکفير العاذر مسئلې بيا زور واخيست چې بغدادې او ورسره بعثي جنرالانو دا ځل بيا له زيرکتيا ځخه کار واخيست. چون حازميان په اسلامي دولت کې ډير قوي او د نفوذ خاوندان دي نو بغدادي د دوی غوښتنه اومنله. عدناني ته امر وشو چې يوه مقاله وليکي چې پکې د ظواهري د کفر حکم شوی وي، چې هماغسې وشول. عدناني د ابوميسرة الشامي په نوم د طمس الرموز تر عنوان لاندې مقاله وليکله چې پکې ظواهري کافر اوبلل شو(العياذبالله) له هماغه مقالې وروسته د داعش په رسمي او غير رسمي ميديا کې اوس د ظواهري لپاره پخواني القاب نه کارول کيږي بلکې د مرتد، کافر، طاغوت په نومونو يادول کيږي چې ترشا يې همدا راز پروت ؤ.

د حازمیانو سره بعثي جنرالان دوه مخې چلند کوي چې هم یې د خپلو مخالفینو په وړاندې د شرعي سپر په ډول استعمالوي او هم یې له فکري انحرافه دوی هم ویره لري چې هسې نه چې د بغدادي په وړاندې پاڅون وکړي، چې د ابوجعفرالحطاب پېښې دا هر څه په ډاګه کړل.

د داعش په داخل کې له دوه پلوه لوی انحراف شتون لري، په نظامي اړخ کې د بعث ګوند پخواني مجرمین واکمن دي چې هیڅ شرعي حدود نه پیژني او په شرعي اړخ کې بیا تونسي حازمیان واکمن دي چې دوی په تکفیر کې د جنون حالت ته رسیدلي. تونس چې څلویښت کاله د زین العابدین تر واکمنۍ لاندې ؤ، په هر ډول اسلامي دعوت مرکونې بندیز ؤ، هیڅ دیني مکتب، مدرسې شتون نه درلود، خو یوناڅاپه داعش ته راغلي ټول تونسیان د داعش شرعیان او لوړپوړي قاضیان شول. سوال دا دی چې په دومره یوه شاته پاتې ټولنه او له دینه لرې یوه جامعه کې څنګه په یو څو کلونو کې دومره لوی لوی مفتیان قاضیان پیدا شول؟ دوی په کوم جامعه کې خپل تحصیل سرته ورساوه؟ د کوم استاذ نه یې علوم زده کړل؟

د ابوجعفرالحطاب له وژل کیدو وروسته ابوخباب العراقي او ابومیمون العراقي دواړه د مجلس الشوری غړي شول. څکه دا مهال د عراق له جبهې څخه د ځوانانو د جلبولو ضرورت دی نو باید له عراقیانو استفاده وشي. ابوخباب او ابو میمون دواړه په فکري لحاظ حازمیان دي.

د داعش په مینځ کې حازمیان ډیر نفوذ لري څکه دوی په جامع جوماتونو کې عامو خلکو او مجاهدینو ته شرعي دورې ورکوي او دغه شرعي دورو ته حاضریدل د سیمې په خلکو لازمي دي که ورته حاضر نشي د تعذیب لاندې نیول کیږي.

څه موده وړاندې حازمیانو د بنغلیانو مشر او د دوی ټول مربوط شرعیان راجمع کړل او له هغوی څخه یې استتابه(د توبې غوښتنه) وکړه. شرعي قیادت د انکار په صورت کې، د دوی د وژلو پریکړه وکړه څکه دوی د تکفیر العاذر په مسئله کې د عاذر د کفر حکم نه کوي نو د خوارجو د قاعدې مطابق (څوک چې کافر ته کافر نه وایي کافر دی) بنغلیان ټول کافران دی نو باید لومړۍ ترې استتابه وشي، د انکار په صورت کې باید اوژل شي. په دولت کې د بنغلیانو د کمزورۍ له امله دوی مجبور شول چې په عام محضر کې له خپل کفر توبه اوباسي چې د داعش میډیا غوښتل چې موضوع پټه کړي ولې په ټویټر کې د (استتابة البنغلي) د هاشتاق لاندې دا موضوع رسوا شوه.

بنغلي چې د داعش تکړه لیکوال بلل کیده او د داعش په مطبوعاتي برخه کې خورا فعال ؤ او د بغدادي په اړه یې یو مادحانه کتاب هم لیکلی ؤ، دا ډیره موده یې څرک نه معلومیږي، څکه د شرعي قیادت له لوري د نوموړي په هر راز فعالیت بندیز لګیدلی. دا نه یواځې بنغلي بلکې د ده په ټولو پلویانو بندیز دی.

د داعش عسکري قیادت چې د پخوانیو بعثي جنرالانو په لاس کې ده، د یوه استخباراتي ادارې په څیر تل د هغه کسانو په څار او مراقبت کې زیار باسي، چې یا له فکري پلوه له دوی سره سل په سلو کې جوړ نه وي یا بالقوه د دوی لپاره کوم ګواښ ایجادولی شي.

د همدې لړۍ لومړی قرباني عمرالقحطاني ؤ. نوموړی هغه وخت د عسکري قيادت له لورې په نظر کې واخيستل شو، چې کله نوموړی د ټول دولت شرعي مسئول ؤ او په يوه ويډيويي کليپ کې يې اويل: که أيمن ظواهري د بغدادي له خلافت انکار کړې نو ټول بيعت کونکي محلول البيعة ګرځي. د ظواهري له وضاحت وروسته نوموړی هغه مهال ژوندی ژک ورک شو، چې له رقه ښار څخه موصل ته پرلاره ؤ. يونيم کال وروسته هم د نوموړي هيڅ درک معلوم نه شو، په داسې حال کې چې نوموړي په ټويټر کې حساب درلود او خورا فعال ؤ.

ابوعبدالله الکويتي حازمي فکره ؤ. د شعيطات د قبيلې د ۱۲۰۰ کسانو د وژلو حکم هم نوموړي صادر کړی ؤ. نوموړی هم په دې تور چې د کويت د استخباراتو ايجنټ دی د داعش د عسکري قيادت له لورې اوژل شو.

## د داعش په آړه له دوی څخه د بيلو شويو ګواهۍ

### د ابو ذر العراقي ګواهي

ابوذرالعراقي په ۲۰۰۳م کال د زرقاوي له ډلې سره يوځای شو. نوموړی ډير وخت په عراق کې ؤ. د ۲۰۱۴ په لومړيو کې سوريې ته راغلو او هلته لومړی د حسکة اداري مدير (الاداري العام) وروسته د الميادين والي وټاکل شو. نوموړي په يوه ويډيويي کليپ کې له ډيرو هغه جرائمو پرده پورته کړې، چې په سوريه کې داعش ډلې ترسره کړي دي. نوموړی وايي: کله چې زه د الميادين والي وم، د احرارالشام ډلې ځايي مشر ابواسامة راته پيغام وليږلو ترڅو له هغه سره ليدنه وکړم او د خپل منځي ستونزو په حل سره خبرې وکړو. لس بجې زموږ ترمينځ رسمي ليدنه روانه وه چې خبر شو چې په الميادين کې د احرارالشام په مرکز د داعش له لورې ځانمرګی برید ترسره شو چې د لسګونو مجاهدينو د وژل کيدو او د لسګونو د زخمي کيدو سبب شو. زه حيران شوم او عامرالرفدان چې د ديرالزور والي او د ځانمرګو بريدونو مسئول، سره مې ليدنه وکړه. له هغه څخه مې وپوښتل چې تاسو ولې د احرارالشام په مجاهدينو پسې بريدګر راليږلی ؤ؟ ايا هغوی مسلمان، مجاهدين نه دي؟ خو عامرالرفدان ماته په ځواب کې همدومره اويل چې دا د دولت پاليسي ده او ته په دې نه پوهيږې او زه يې له دندې ګوښه کړم. زه ابو مصعب التونسي ته چې د ديرالزور شرعي ؤ، ورغلم هغه ته مې شکايت وکړ خو هغه هم دوی مرتدين اوبلل.

عراقي په ويډيويي کليپ کې بغدادي ته خطاب کوي: اې بغدادي له الله څخه اويريږه او د قيامت په ورځ به د الله په وړاندې د عبدالکريم ابن باز، ابومصطفی، ابوبکر السبعاوي د وينو څه ځواب وايې؟ هغه انصار چې ستا په امر اوژل شول او جرم يې يوائې دا ؤ، چې ستا له بيعت يې انکار کړی ؤ(دا درې واړه په اسلامي دولت کې لوړپوړي قومندانان ؤ)

عراقي زياتوي: اې دواعشو تاسې چې زما دا ويډيو اوګورۍ، په ما به هم د مرتد حکم وکړی. د الله په ذات قسم زه موحّد يم او د صليبيانو او رافضيانو په وړاندې مې جهاد کړی دی. د عراق په هر محاذ کې جنګيدلی يم چې په خپله تاسو ته دا خبره معلومه ده.

د ابو ذر العراقي د شاهدۍ بشپړ تفصيل په لاندې ويډيو لينک کې ليدلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.FlcFh3Lh4aY

## د ابومصعب التونسي ګواهي

ابومصعب التونسي د تونس ده. نوموړی د اسلامي دولت سره د یوځاي کیدو په هدف لومړی لیبیا ته راغلو له هغه ځایه شام ته راغلو. نوموړی خپله قصه داسې بیانوي: کله چې شام ته راغلو، په ادلب کې د داعش په مرکز کې میشت شو او لس ورځې راته د داعش د مؤظفو شرعیانو له لوري فکري روزنه راکړل شوه. له لسو ورځو انتظار وروسته د داعش د بهرنیانو د چارو مسئول راته اویل چې ته څه کول غواړې؟ ما ورته اویل غواړم فدايي تعرضي عملیات ترسره کړم.

موږ د ابوعلي الانباري سره ولیدل هغه راته اویل: چې ستاسو عملیات به د نورالدین زنګي په مرتدینو باندې وي. موږ ته معلومه نه وه چې د نورالدین زنګي مربوط کسان څوک دي او دا نوم څوک کاروي؟ موږ ته معلومه نه وه چې دولت او القاعده په فکري ډول جدا دي بلکې موږ ویل چې دواړه یو مجاهدین دي. موږ د بصراتون په سیمه کې د داعش د ځانمرګو بریدونو یو معسکر ته راولیږدول شو او هلته مو څه موده پوځي روزنه ترلاسه کړه چې وروسته یوې نامعلومې خواته ولیږدول شو. موږ حق نه درلود چې پوښتنه وکړو چې کومې خواته ځو او که به چا دا پوښتنه کوله هغه په جاسوسی تورن کیده. بس موږ ته دومره اویل شول چې ستاسو عملیات به د پي کې کې په مرتدینو باندې وي خو کله چې موږ هدف ته ورسیدو او هغه مرکز ته داخل شو او برید مو پیل کړ، دجبهة النصرة بیرغ مو ولیدو.

د ډزو له لړې تبادلې وروسته راته واضحه شوه چې موږ د پي کې کې نه بلکې د جبهة النصرة په مجاهدینو برید کړی. موږ له دوی څخه امن اوغوښتو او له دوی څخه مو اوغوښتل چې ستاسې شرعي دې زموږ سره خبره وکړي. د دوی د شرعي سره له خبرو وروسته مو خپله ټوله اسلحه او بارودي واسکټ دوی ته وسپارل.

نوموړی وايي: په الله قسم د داعش مطبوعات چې څه نشروي، په ساحه کې حقائق له هغې ډیر خلاف دي. د دوی له میډیا څخه موږ الهام اخیستی ؤ چې ګنې دلته یو اسلامي خلافت قایم شوی چې حقیقت بل ډول ؤ. موږ د جبهة النصرة له چلند څخه ډیر شرمنده یو. دوی زموږ سره ډیر د ورورۍ چلند وکړ. د ابومصعب التونسي د ګواهی بشپړ ویډیو په دې لینک کې کتلاي شی

https://m.youtube.com/watch?v.bZb-GQByzx0

## د بوډا مصري ګواهي

ابوالیسر محمود عبدالجبار د مصر د اسکندریې ولایت اوسیدونکی دی. ۷۲ کلن بوډا د داعش له لورې د جبهة النصرة په لورې د موټر بم سره د دې لپاره لیږل شوی ؤ چې په دوی ځان وژونکی برید ترسره کړي. نوموړی چې د جبهة النصرة د

مجاهدینو د چاؤدیدونکو توکو ډک موټر سره نیولی، خپله قصه داسې بیانوي: په ۲۰۱۳ م کال د ترکیې له لارې سوریې ته د مجاهدینو سره د یوځای کیدو لپاره راغلم. لومړی په جبل الاکراد کې وم هلته مې ۷ میاشتې تیرې کړې. ابوایوب التونسي راته د استشهادي برید وړاندیز وکړ. ما ورسره اومنله او نیت مې د الله رضا حاصولول ؤ خو ما په دوی شرط کړه چې د بشار په پوځ به راته برید تنظیموي. دوی په غدر زه په مجاهدینو پسې راولیږلم. نوموړی د مجاهدینو له نیک چلند څخه ډیر خوښ دی. د ابوالیسر بابا د ګواهۍ بشپړ ویډیو په دې لینک کې کتلی شی.

## د ابوالبراء الجوفي ګواهي

ابوالبراء الجوفي چې د داعش له لوري د جبهة النصرة په مجاهدینو پسې رالیږل شوی ؤ خپله قصه داسي کوي: زه دلته د مسلمانانو د کومک لپاره سوریې ته راغلم او دلته له اسلامي دولت ډلې سره یوځای شوم او په حلب کې د دوی په یوه معسکر کې مقیم شوم. ما غوښتل چې شهادت غوښتونکی برید ترسره کړم. له ډیر انتظار وروسته راته ابوعمارة العراقي اویل: په ادلب کې د مرتدینو په یوه مرکز ستاسو برید تیار دی. وړاندې راته هیڅ معلومات رانکړل شول چې دا مرکز د چا دی او د عملیاتو تنفیذ به کله وي؟ کله چې د برید ځاي ته تقریبا ۵۰۰ متره نږدې شوم نو راته اویل شول چې په دې کلي کې یو کور دی په هغې کې مرتدین دي د دوی په مینځ کې به برید ترسره کوې. ما ترې وپوښتل: دلته خو به عام خلک نه وي؟ هغوی راته اویل نه دا ټول کافران دي. نوموړی کور د جبهة النصرة د ځايي مشر ؤ.

مور چې کله هغه کور ته ورسیدو لومړی زما بل ملګري ابوسعد د خپل واسکټ په توسط د جبهة النصرة په مجاهدینو برید ترسره کړ. وروسته زه کور ته داخل شوم، ګورم هلته ښځې او ماشومان دي او یو بوډا سړي راته په چیغو کې اویل: زه له هرڅه بیزاره یم زه یو عام سړی یم. زه پورته چت ته پورته شوم او ډزې مې شروع کړې. له لږ ځنډ وروسته راته معلومه شوه چې د دولت له لوري زموږ سره غدر شوی او موږ په مسلمانانو پسې رالیږل شوي یو. ما له دوی څخه اوغوښتل چې ماته ستاسو یو شرعي راولئ چې شرعي په راتلو مې خپل واسکټ او اسلحه دوی ته تسلیم کړه.

نوموړي په یوه ویډیو کې له ډیرو نورو حقائقو پرده پورته کړې چې په لاندې لینک کې دا ویډیو کتلی شی

https://m.youtube.com/watch?v.QNJDi2MrauI

## ابو ذر الجزراوي ګواهي

ابوذر چې غوښتل یې د جبهة النصرة په یوه مرکز ځان وژونکی برید وکړي، د جبهة النصرة د مجاهدینو له لوري ژوندی ونیول شو. په یوه ویډیو کې نوموړي له ډیرو ناویلو حقائقو پرده پورته کړې. نوموړی وایي: زه شام ته د جهاد په موخه راغلم او دلته له اسلامي دولت ډلې سره یوځای شوم چې په الشدادي ښار کې له معسکر وروسته مې وغوښتل چې استشهادي برید ترسره کړم. د ابوعمارة العراقي له لوري راته په جبهةالنصرة د برید وړاندیز وشو چې ما رد کړ. درې ځله د ابوعمارة له لوري په جبهة

النصرة د بريد وړاندېز راته وشو چې ما رد کړ خو په اخيري ځل نوموړي راته اوېل: ستا بريد په مرتدينو دی او ته بايد تياری ونيسې. ترهغه وخته راته د بريد مشخصات نه ؤ ښودل شوي، ترڅو چې د خپل هدف ته پنځه سوه متره نږدې شوؤ راته اوېل شول چې فلانی کور چې د مرتدينو يوه غونده پکې روانه ده ستاسې هدف دی.

موږ چې کله په کور بريد وکړ او هلته داخل شؤو نو د ښځو او ماشومانو چيغې مو واؤريدې چې په زړه کې مو داسې شک پيدا شو چې ګواکې موږ په عامو مسلمانانو بريد کړی. له لږ ځنډ وروسته راته واضحه شوه چې زموږ سره غدر شوی. له دوی څخه مو د شرعي غوښتنه وکړه. له هغه سره له خبرو وروسته موږ دوی ته تسليم شؤو. ابوذر چې د مجاهدينو له ښه چلند څخه خجالت احساسوي ژاړي او وايي چې دوی زموږ سره د ورونو په څېر چلند وکړ. د ابوذر د ګواهۍ ويډيو په دې لينک کې کتلی شی.

https://m.youtube.com/watch?v.jAnDEdclqc8

## د ابوعبدالله المغربي ګواهي

ابوعبدالله چې له مراکش څخه د داعش سره د يوځاي کيدو لپاره سوريې ته راغلی ؤ، داسې وايي: لومړی مې معسکر وکړ وروسته حلب ته ولېږل شوم او هلته مې په يوه سرحدي پوسته کې دنده ترسره کوله چې د استشهادي بريد غوښتنه مې وکړه. موږ د رقه ښار ته راوړل شؤو. له هغه ځايه راته امر وشو چې د پي کې کې مرتدينو په خلاف عمليات دي. موږ د بريد په هدف روان شو. کله چې موږ بريد د دوی مرکز ته ننوتو مجاهدين مو په لمانځه وليدل او راته جوته شوه چې موږ په مجاهدينو بريد کړی. نوموړی د بريد نور جزيات په لاندې ويډيويي لينک کې بيانوي.

https://drive.google.com/file/d/0B_Zs_99Tv5vxVk54SC1Ddk5nR1U/view?usp.drivesdk

## د قاضي ابوشعيب المصري ګواهي

ابوشعيب المصري چې لوی عالم دی په ليبيا کې د داعش د سترې محکمې عمومي قاضي پاتې شوی. نوموړی په يوه صوتي مقطع کې د داعش څخه د خپل جلاوالي دلايل داسې بيانوي: زه چې کوم حقائق بيانوم په دې الله ګواه جوړوم او د دولت په مينځ کې ټول هغه کسان چې زما سره يوځای اوسيدلي په دې حقائقو ښه خبر دي. زما هدف له دې څخه يواځې د الله او د مسلمانانو په وړاندې د خپل مسئوليت اداء کول دي ترڅو امت د دې ډلې له انحرافه خبر شي. دويم مهم هدف مې د هغو مخلصو مجاهدينو او استشهاديانو د وينې ساتل دي چې د پاکې اسلامي جذبې په اساس غواړي فدايي بريدونه ترسره کړي. د داعش مشران په ځای د دې چې دوی په اساسي اهدافو کې وکاروي او د کافرانو خلاف يې استعمال کړي، د مجاهدينو مرکزونو ته يې لېږي او د هغو مجاهدينو د شهادت سبب ګرځي او هم د دې پاک زړو د دنيا او اخرت تباه کوي. نوموړی په دې

لړ کې د ابوسلمان السوډاني چې له کوره د شهادت غوښتنې په مينه راوتلی ؤ، يادونه کوي چې په مجاهدينو يې ځان وژونکی برید ترسره او د داعش مشرانو د نوموړي دنیا او اخرت دواړه ورتباه کړل.

نوموړی وايي: زه هم د نورو مسلمانانو په څير چې کله خلافت اعلان شو، ومې ويل: چې د خلافت خوبونه مو رښتيا شول. دا چې د خليفه ټاکل فرض دي او د مشروع خليفه سره بيعت هم فرض دی نو ما هم د خلافت له کاروان سره په بيړه د پيوست کيدو عزم وکړ او راغلم ليبيا ته ترڅو دلته د خلافت له کاروان سره يوځای شم. چې کله ليبيا ته راغلم دلته د شرعي محکمې مدير وټاکل شوم. ما له لومړي ورځې مې حس کړه چې دلته مهاجرين ترکلکې محاصرې لاندې دي. هغوی نه پرېښودل کيدل چې له چا سره په کومه موضوع خبرې وکړي. خو ما به په دې دلايلو ځان ته ډاډ ورکاوه چې ګنې دولت د امنيتي دلائلو په اساس غواړي له بهر څخه راتلونکي کسان تر امنيتي کنټرول لاندې ونيسي. ما چې کله په شرعي محکمه کې کار پيل کړ، راته اويل شول چې د درنة د مجاهدينو شوری مرتدين دي ځکه هغوی د مرتدينو سره ائتلاف کړی او په طاغوت باندې کفر نه کوي. کله چې د دوی سره زموږ جنګ رامنځته شواو موږ د دوی سره اسيران شو، د دوی شرعي راغلو او موږ ورسره خبرې وکړې. د دوی نيک چلند مو وليدو راته څرګنده شوه چې دا مرتدين نه دي بلکې د داعش د عادت له مخې څوک چې د دوی سره بيعت نه کوي لومړی دوی د هغوی په اسلحه او وسلو قبضه کول غواړي که هغه ډله د دوی د تيرې د مخنيوي په خاطر په متقابل عمل لاس پورې کوي، بيا يې دوی مرتدين بولي او مال او نفس يې حلال بولي. د نوموړي قاضي د خبرو پوره تفصيل په لاندې لينک کې اوريدلی شی.

https://drive.google.com/file/d/0B_Zs_99Tv5vxSHpIMlBSc216Ukk/view?usp.drivesdk

## د ابوتراب المجاهد ګواهي

ابوتراب له اصله امريکايي دی او د داعش سره په ۲۰۱۳م کال يوځای شوی دی. نوموړی چې عسکري خِبرې لري په ديرالزور کې د داعش د يوه معسکر مسئول او روزونکی ؤ. نوموړي په يوه ويډيو کې چې انګليسي ژبه خبرې کوي، د بغدادي په دولت کې مخلصو مجاهدينو ته په خطاب کې داسې وايي: اې د بغدادي په دولت کې هغو مهاجرينو، چې شام ته مو د ضعيفانو سره د مرستې لپاره او د دين د امداد لپاره هجرت کړی: زه د دير الزور په معسکر کې روزنکی وم. د داعش د غړو سره د څلورو مهاجرينوملګرو په تکفير بحث شو چې د داعش د غړو په نظر هر هغه څوک چې د دوی مخالفت کوي کافر دی. څلورو مهاجرو ملګرو د مرکز څخه د تيښتې اراده وکړه چې درې يې د داعش له لورې په ډيرې بې دردۍ اوژل شول اويو يې په تيښته بريالی شو. دغه زما نظر بدل کړ او دا سوال راسره پيدا شو چې آيا زه د يو داسې ډلې لپاره خپل ژوند مصرفوم چې ګمراه ده؟ همدا سبب شو چې له داعش څخه جدا شوم او د القاعدې سره يوځای شوم هغوی چې د جهاد اصلي ممثلين دي.

نوموړی وايي: د بغدادي د دولت او د آل سعود د دولت ترمينځ څه فرق دی؟ که د غله څخه لاس پرې کول، د رناکار په درو وهل اسلام وي بيا د آل سعود دولت هم اسلامي دولت دی ځکه هغوی هم حدود نافذوي. دوی په ديرالزور کې هغه مجاهدين د شا لخوا محاصره کړي چې د بشار پوځ سره په جګړه بوخت دي. نوموړی داعش ته په خطاب کې وايي: موږ په کوم دليل مرتدين يو؟ آيا همدا د کافرانو طيارې، د دوی ټانکونه، د دوی توپونه په موږ بريدونه نه کوي؟ ايا تاسو يې نه وينۍ؟ زموږ په هستوګنځايونو کې تاسې اذان نه اورۍ؟

نوموړی وړاندې وايي: تاسې بايد درک کړی چې په سوريه کې مهاجرين د جنګ لومړيو ليکو ته ليږدول کيږي او انصار چې ډيری يې د اسد د شبيحې غړي دي او په وروستيو کې د دې لپاره چې د مجاهدينو له محکمې ځان وژغوري، د بغدادي سره بيعت کړی. په لويو لويو جنګونو کې شرکت نه کوي. تاسې ولې د بعث ګوند جنرالان د مسلمانانو په ګردنونو واکمن کړل؟ ابو مصعب الزرقاوي خو بعثيانو ته د دوی د فاسدو عقائدو په وجه دوی ته په تنظيم کې د غړيتوب اجازه نه ورکوله. تاسو خو دوی اميران جوړ کړل ولې؟ ځنکه چې د آل السلول سعودي دولت مسلمانان دوکه کوي همداسې تاسو د امت ځوانان دوکه کړل. دوی هم د توحيد بيرغ پورته کړی، قرآن کريم چاپوي، د غله لاس پرې کوي، زناکار په درو وهي، خو ورسره يې د حرمينو په خاوره کې امريکايان ميشت کړي چې د لويديځ د ګټو ساتنه کوي. همدا ډول تاسو هم د مجاهدينو په خلاف جنګ شروع کړی. همدا ډول تاسو د نصيرسانو څخه نيول شوي، د طبقة هوايي ډګر، ۱۷فرقه، ۹۳لواء د بشار پوځ ته وسپارل او تاسې ديرالزور ته د مجاهدينود جنګ لپاره لاړی.

ځنکه چې د سعودي کافر نظام ظاهرا د شريعت د تحکيم چيغې وهي او بل پلو ته يې سياسي زندانونه جوړکړي چې مسلمانانو او مجاهدينو ته پکې شکنجې ورکول کيږي، دا هرڅه د دې لپاره چې د دوی واک او قدرت دوام وکړي، همدا ډول د بغدادي دولت ظاهرا د شريعت د تحکيم چيغې وهي خو مشران يې د دې لپاره چې تل په قدرت کې پاتې شي، سياسي زندانونه يې جوړ کړي چې مجاهدين او مسلمانان پکې تعذيبيږي. د ابوتراب بشپړ ويډيو په لاندې لينک کې کتلی شی.

https://www.youtube.com/watch?v.WLPBL2nXC7c&feature.youtu.be

## طه حمام فلاحه(الشيخ ابومحمد العدناني)

### د عدناني انحرافات

طه حمام فلاحة د سوريې د ادلب ښار د بنش د سيمې اوسيدونکی دی. د ادلب د فوټبال د ملي ټيم لوبغاړی تر ۲۰۰۳کال پورې د لوبو يو اتل ؤ چې په ۲۰۰۵م کال عراق ته لاړ اوهلته د زرقاوي سره يوځاي شو. د ابوعمرالبغدادي له وژل کيدو وروسته، چې کله ابوبکر البغدادي د اسلامي دولت مشر وټاکل شو، نوموړی د دولت رسمي وياند او د مجلس الشوری غړی

شو. له داعش څخه د بيلو شويو له قوله عدناني يو چاپلوس صفته، تملق کونکی، اديب دی چې له همدې وجې د بعثيانو په دوره کې نوموړی رسمي وياند وټاکل شو.

نوموړي د نړۍ د مجاهدينو تر مينځ هغه وخت ډير شهرت وموند چې کله يې د مرحوم اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد په اړه يوه ادبي، مدحيه ترانه اويله. نوموړي اميرالمؤمنين د مسلمانانو يو اتل اوباله، خو د بغدادي د خلافت له اعلان وروسته عدناني د خپلو مخالفينو په وړاندې مطبوعاتي سنګر ونيوو.

عدناني له علمي پلوه ډير خام ؤ. د نوموړي علمي عمق د ده له غږيزو پيغامونه ښه معلوميدلی شي، نوموړي تل په ځای د دې چې د خپلو مخالفينو تنقدينو ته په منطق ځواب اوايي، د تهديد، شتم، سپکو سپورو لاره غوره کوله.

## د عدناني مباهله

مباهله د مفاعلې دروازه ده چې اصل يې بهل دی او بهل په عربي لغت کې په ښيرا کې ډير مشقت کولو ته وايي چې بيا ځيني لغت پوهان يې د عربو له دې جملې څخه بولي(عليه بهلة الله) ای لعنته يعني بهل لعنت ته وايي چې مباهله د خپلې مدعا د تکذيب په صورت کې په خپل ځان لعنت ليږلو ته وايي. د نجران نصارا رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل او د عيسی مسيح په اړه او د رسول الله د رسالت په اړه يې بحث وکړ چې په پای کې دوی له رسول الله صلی الله سره د مباهلې غوښتنه وکړه چې په مائده سورت کې د مباهلې ايت نازل شو، خو نصاراؤ د مباهلې څخه انکار وکړ.

په ۲۰۱۴ کال چې کله بغدادي ځان د خليفه په توګه اعلان کړ او په سوريه کې يې د مجاهدينو له ټولو ډلو وغوښتل، چې يا دې د دوی مزعوم خليفه سره بيعت وکړي يا دې خپلې وسلې دوی ته وسپاري او کورونو ته دې لاړ شي. د دوی تر مينځ اخ او ډب رامينځ ته شو او هر لوري مقابل طرف پر باله چې د جبهة النصرة مجاهدين د دې فتنې تر ټولو لومړي قربانيان ؤ. ابو عبدالله الشامي چې د جبهة النصرة شرعي مسئول ؤ، په خپل يوه غږيز پيغام کې د ټولو وژنو پړه په داعش ورواړله چې ابو محمد العدناني د ده د غږيز پيغام په ځواب کې د (ثم نبتهل فنجعل لعنة الله علی الکاذبين) تر عنوان لاندې يوه غږيزه وينا خپره کړه. عدناني په دې وينا کې الشامي ته د مباهلې بلنه ورکړه. عدناني په ۱۸ دقيقه ۱۷ ثانيه کې داسې وايي: ما د ابوعبدالله الشامي کذاب وينا واؤريده، نو اې مسلمانانو شامي که رېښتيني وي زما سره دې مباهله وکړي. اې مسلمانانو تاسې زما په بد دعاؤ امين اوايئ او په درواغجنو لعنت اوايئ. اې الله شامي ګمان کوي چې اسلامي دولت د جبهة النصرة د ستونزې قضيه شيخ ظواهري ته وړاندې کړي وه، دولت د جهاد د امامانو د عقيدې په اړه ناروا انځور وړاندې کوي، دولت لومړی د مخالفينو په جبهاتو بريد کړی.............. او دولت هر هغه ځوک چې د دوی په وړاندې جګړه کوي کافر او له ملت وتلی بولي........ اې الله زه تا ګواه جوړوم هغه څه چې ما يې يادونه وکړه او شامي يې په دولت پورې تړي دا په دولت باندې درواغ او تهمت دی، دا زموږ تګلاره نه ده او نه په دې عقيده يو. اې الله په موږ دواړو کې چې کوم يو درواغجن وي په هغې خپل لعنت راوليږه، موږ ته په هغه کې ستا د قدرت نشانې وښيه، د نورو لپاره يې عبرت وګرځوه(نوموړی دا جملې درې ځله تکراروي) اې

الله څوک چې د جهاد او مجاهدینو لپاره دسیسې جوړوي، د ده مکر د ده په ګردن کې واپس کړه. رسوا یې کړه. د نورو لپاره یې عبرت وګرځوه.

(http://www.archive.org/download/al.adnani/n.mp3)

نوموړی بیا د (ما كان هذا منهجنا ) تر عنوان لاندې په ۱۶دقیقه ۱۷ ثانیه کې داسې وایي: اې الله که دا دولت د خوارجو دولت وي، ملا یې ماته کړه، مشران یې اوژنه، بیرغ یې رانسکور کړه،

(http://www.gulfup.com/?Cp1BCq )

د عدناني سره مباهله کونکی، شیخ ابوعبدالله الشامي بیا د عدناني په ځواب کې په خپل غریز پیغام کې په ډیر شفقت او لطف داسې اویل:اې عدناني د مباهلې امر ډیر خطرناک دی او پام چې د مجاهدینو ترمینځ دا لار مه تیروه. تا په ډیر خطرناک کار د اقدام کولو اراده کړې. زه تاته بیا هم وخت درکوم او وایم چې اې عدناني د الله په مخ کې به ستا پیشي کیږي نو له الله اویریږه او له مباهلې وګرځه. ممکن د هغه څه په اړه چې ته مباهله کوې، ستا له علمه د باندې وي یا غصې نیولی وې او زه الله تعالی په دې ګواه جوړوم چې دا خبرې زه تهربا یا د ویرې او ډار له وجې نه کوم بلکې د الله د رضا لپاره ستا خیرخواهي کوم. که ته له مباهلې واپس شوې خو ښه ده کنه زه ستا سره مباهلې ته تیار یم او بیا هم وایم او الله تعالی ګواه جوړوم چې زه ستا لخوا مباهلې ته مجبور کړی شوی یم او خپل شکایت الله تعالی ته وړاندې کوم. نوموړی وړاندې وایي: اې الله زه تا ګواه جوړوم چې زه د عدناني لخوا مباهلې ته مجبور کړی شوی یم او که له مباهلې شاتګ او زما چوپتیا د دوی د باطلې تګلارې لپاره دلیل نه جوړیدی؛ ما به د ده سره مباهله نه وی کړې. اې د جبریل او میکائیل ربه: اې د زمکې او اسمانونو پیدا کونکیه: ته د بندګانو ترمینځ د دوی د لانجو ښه فیصله کونکی یې. زموږ ترمینځ فیصله وکړه او موږ ته د نیکې لارې هدایت وکړه.

د عدناني له مباهلې وروسته د داعش لومړی مشر ابوعلي الانباري ؤ چې اوژل شو. انباري د بغدادي نائب او د داعش د ټولو چارو مسئول ؤ. له هغه وروسته سویداوي، بیلاوي، ترکماني چې تر ۱۴ قیادي مشران یې اوژل شول. تر ټولو وروستی یې شیشاني، عدناني، فاروق عراقي ؤ. د مقابل لوري جبهة النصرة ټول قیادي مشران لا هم ژوندي دي او د مباهلې د فریق چې جبهة النصرة ده هیڅ قیادي مشر نه دی وژل شوی په داسې حال کې چې د جنګ په لومړیو لیکو کې شتون لري.

د داعش ځینې مطبوعاتي دجالان د امیرالمؤمنین شهادت یا د القاعدې د نورو څانګود مشرانو شهادت د مباهلې له وجې بولي په داسې حال کې چې مباهله د عدناني او جبهة النصرة تر مینځ شوي وه او د القاعدې نورې څانګې یا اسلامي امارت نه د دې مباهلې اړخ ؤ او نه اصلا ترې خبر ؤ.

## د موبايلو لپاره د جوړ شوي اپليکېشن څو سکرين شاټونه




د کتاب د نشرولوحق له ټولو مسلمانانو سره خوندي ده